# زاړۀ یادونه

(شاعری)

خواجه محمد سائلؔ
بهادر کلے پېښور

| | | |
|---|---|---|
| دَ کتاب نوم | ———— | زاړهٔ یادونه |
| لیکونکے | ———— | خواجه محمد سائل |
| کتابت | ———— | ارشاد خان "پښتو اکېډیمی" |
| شمېره | ———— | پینځهٔ سوه (۵۰۰) |
| دَ چاپ کال | ———— | ستمبر ۲۰۰۳ء |
| قیمت | ———— | اویا روپۍ (۷۰/-) |

———————

# څو خپلې خبرې

لکه څنګه چې نن سبا د سکول ابتداء د پاکستان د ترانې
په وېنا کېږي. د پاکستان د جوړېدو نه اګاهو د مدرسې د هر
ورځ اغاز د حمد و نعت په ښائسته او با برکت کلام وو. ۱۹۴۶ء
وو. زه په دريم جومات کښې ووم. د خپل کلي د مدرسې
مشر سيد قاسم شاه باچا (رح) زه هم د هغه څلور شپږ هلکانو
ډله کښې شامل کړم. چا چې په ښائسته اواز د سکول ابتداء د
حمد و نعت په وېنا کوله. دغه زمانه ابتدائي تعليم څلورم
جومات پورې کېدلے شو. او زمونږ سکول هم تر څلورم جومات
پورې وو. دې نه پس به يا خو د ښار سکولونو يا د بېړه بېړ
په هائي سکول کښې داخلېدل وو. پښتو مضمون په مدرسه
کښې لوستل لازمي وو. ما ته ياد دي. چې د هغه وخت د حمد
و نعت ډېر نظمونه ما څخه يو کاپي کښې ليک وو. چې مونږ
به وخت په وخت مدرسه کښې ويل. دا هغه زمانه وه
چې غربت ډېر زيات وو. هر چا سکول نه وېلو. بلکې سبق
ويل خاص خلقو څخه محدود وو. البته د نالوستو دا شوق
ضرور وو. چې په حجره بېټهک کښې به يې د لوستو کسانو

نه دَ قیصو کتابونه ډېر په شوق اورېدل غوښتل. ځلې نه وه. رېډيو نهٔ وو. او دَ سير و تفريح وسائل دَ نيشت برابر وو. زمونږ دَ حجرې بيټهک ته به سرى ماښام دَ کار روزګار نه ستړې دَ کور محلت خلق رارسېدلى وو. او مونږ به هغوئ ته دَ قيصو کتابونه لوستل او هغوئ به په ډېر شوق دَ قيصو کتابونه اورېدل.

دَ څلورم جومات نه پس زهٔ ايډوردز هائى سکول (مشن سکول) او بيا ايډوردز کالج کښې داخل شوم. دغه دواړه ځايه دَ پښتو مضمون نهٔ وو. او مونږ دَ عربۍ او فارسۍ په لوستو مجبور وو. خو دَدې باوجود زما تعلق پښتو څخه په دې شکل موجود وو. چې دَ انګرېز خلاف لوے مجاهد محمد اکرم خان څخه دَ پښتو ژبې دَ اديبانو شاعرانو او سياستدانانو رابطه او تعلق برقرار وو. او دَ دغه وخت اکثر اديبان، شاعران او سياسى مشران به دَ هغوئ حجرې ته راتلل چې په دغه کښې صنوبر حسين، سالار فريد خان بابو عبدالمجيد، صاحبزاده مراد، سالار امين جان خان دوست محمد کامل، محمود قلندر، امير حمزه شنوارى عبدالخالق خليق، عبدالمنان استاد، امير محمد خان (مردان) بشير احمد (خاکسار پارټى)، قيمت شاه (پيبى)، عبدالحليم اثر وغيره شامل وو. دَ عبدالرحمٰن بابا دَ هر کال دَ مشاعرې متعلق پروګرامونه به عموماً بهادر کلى کښې تيارېدل - دا هر څهٔ ما ليدل او دَ

دغه پښتو مئين مشرانو دَ قيمتي خيالاتو نه مستفيد کيدلم.

۱۹۵۸ء کښې زهٔ په ديارلسم جومات کښې ووم. دَ کالج دَ "تجلی" ميګزين دَ پښتو برخې طالبعلم انچارج صاحبزاده محمد ارشاد (مرحوم) مجبور کړم. چې دَ رسالې پښتو برخې دَپاره ضرور څهٔ اوليکم. څهٔ مات ګوډ اشعار مې اوليکل. خو چې صاحبزاده (مرحوم) ته مې حواله کړل. نو رساله بيا پريس ته رسيدلې وه. خو دَ ۱۹۵۹ء په ميګزين کښې زما دَ شاعرۍ اولنے غزل "يو بيوفا معشوقې ته" چاپ شو. چې دَ وزن او بحر په لحاظ ډير سم نهٔ وو. دَ څوارلسم جومات نه پس ما کوشش اوکړو. چې لاهور نه ايم اے پولټيکل سائنس اوکړم. خو دَ داخلې فارمونه لاهور نه په ډاک ډير روستو راورسيدل. او دغسې دغه ارمان مې پوره نهٔ شو. مجبور شوم. چې بيره بير سکيم کښې دَ امريکن په ۶۹۳۰ کميونيکيشن فلائټ کښې په ډيره ښهٔ تنخواه نوکر شوم. دلته زما ملاقات دَپښتو ژبې يو ډير ښهٔ شاعر تاج محمد ميکش څخه اوشو. چې دغلته نوکر وو. ماته به ئې روزانه يو نوے غزل اورولو. چې هر غزل به ئې په ډير روان چُست بحر او رنګينۍ نه ډک وو. دَ الله پاک قدرت وو. چې زما مينه او شوق دَ پښتو شاعرۍ څخه بې حده زيات شو. زهٔ به چې کور ته راغلم نو څهٔ مات ګوډ اشعار به مې جوړ کړل. او په سبا به مې ميکش صيب ته واورول. هغه به پکښې څهٔ اصلاح هم اوکړه

دغسې یو کال تېر شو.

۱۹۶۰-۶۱ء کښې ما د لاء کالج په ایف. ای. ایل کښې داخله واخیسته. مونږ دلته د ایف. ای. ایل امتحان ورکړو او هلته پېښور یونیورسټۍ په اول ځل د ایم. اے پښتو کلاسونه شروع کړل. د وکالت ډګرۍ په ځائے پاتې شوه. او د پښتو مینې ایم اے پښتو ته راورسولم. دا هغه ورځې وې چې د عبد الطیف خان مرحوم په حجره او باغیچه (بانه ماړۍ) کښې به د یوسف خان اورکزي په اهتمام د رائټرز کلب تحت باقاعده هفته وار تنقیدي اجلاسونه او مشاعرې کېدلې - پښتو څخه مینه وه - د شعر و شاعرۍ شوق وو. ځان به مې هر مازیګر بلا ناغه بانه ماړۍ ته رسوؤ - د اجلاسونو د رویداد لیکل هم زما په غاړه وو. امیر حمزه خان شنواري، سیف الرحمان سید، عبد الرحمان شباب طاهر بخاري، خیبر افریدے، ناظر افریدے، ساحر افریدے اشراف حسین، ګل افضل خان، شاه افضل خان، مراد شنواري تاج محمد مېکش، قمر الزمان قمر، محمد اشرف غمګین ارباب رشید احمد خان، اکرام الله ګران، داور خان داؤد داد محمد دلسوز، سردار خان فنا، شفقت شهاب، پیر سفید شاه همدرد، فرید صحرائي او نور ډېر ګڼ شاعرانو به په دغه اجلاسونو کښې باقاعده شرکت کوؤ. دغه زمانه قلندر مومند د لاهور قلعه کښې بندیوان وو.

اوچې څهٔ موده پس ازاد شو۔ نو دَهغهٔ ملګرې به دَخېبر
بازار د روستو جوخت اديرې (قبرستان) څخه په کېښينو
کښې راغونډېدل۔ دَ شاعرانو اديبانو دوه ډلې شوې۔
ماته دغه ډله بازې خوند رانکړو۔ او دغسې دَ شعر و
شاعرۍ دغه محفلونو څخه زما تعلق منقطع شو۔ البته دَ
ريډيو په مشاعرو کښې مې باقاعده شرکت کوؤ۔ خو دغلته
هم دَ ډله بازۍ چاپ موجود وو۔ شاعران اديبان چې دَ عشق
و محبت او دَ امن و سلامتۍ او ورورولۍ پيغام رسان وي۔ دَ
هغوئ ترمينځ ډله بازې ما کمسن شاعر دَپاره دَ حېرانتيا
خبره وه۔ او ترخيله وسه مې ځان ترې په ډډه ساتهٔ۔
او بيا په تېره تېره دَخپل محترم استاد ارواښاد مولانا
عبد القادر اصرار زما زياته توجه نثر پلؤ کړه۔ نتيجه دا
شوه۔ چې نثر ليکل مې عام معمول شو۔ او شعر و شاعرۍ ثانوي
حيثيت اختيار کړو۔ دَ ځوانۍ' جوش او رنګين وختونو دغه
څو غزلونه نظمونه مې ډېر په ګرانه راغونډ کړل۔ چې دَ
"زاړهٔ يادونه" په نوم ئې ستاسو په وړاندې ږدم۔ خدائے
دې اوکړي۔ چې ستاسو خوښ شي۔

خواجه محمد سائل
بهادر کلے پېښور

# لوئ الله

د هر څه نه چې بالا دے
لوئ الله دے لوئ الله دے

دغه شنه شنه چمنونه، ښائسته ښکلی ګلونه
په وږمو ئې معطر، د سحر باد چې د صحرا دے
لوئ الله دے لوئ الله دے

دې لوړو دنګو غرونو، ځنګلونو ته لږ ګوره
اشارونه ترې را دروي، قدرت ئې هويدا دے
لوئ الله دے لوئ الله دے

د اسمان بې شمېره ستوري، انساني عقل حيران دے
ښائيست ئې د سپوږمۍ دے، هم نمر ئې په رڼا دے
لوئ الله دے لوئ الله دے

کائنات دی موجودات دی، نباتات دی جمادات دی
دَدې ټولو مخلوقاتو، خالق واحد یکتا دے
لوئے الله دے لوئے الله دے

سیندونه دریابونه، موجونه هواګانې
دَ فطرت مظهر ته ګوره، لوئے ربط پکښې پیدا دے
لوئے الله دے لوئے الله دے

پیدا اوښت ئې په رنګ رنګ دے، انسان دے که حیوان دے
مارغانو ته نظر کړه، صورت شکل جدا دے
لوئے الله دے لوئے الله دے

په اسمان کښې یو پرقا ده، دَ رحمت باران وریږی
دَ جهان تږی مړیږی، دغه کار وایه دَچا دے
لوئے الله دے لوئے الله دے

که شمسی دے قمری دے، ټول نظام په یو ترتیب دے
یو لمحه پکښې فرق نیشته، کارساز واحد خدا دے
لوئے الله دے لوئے الله دے

قدرت دَ انسان څۀ دے چې بدل دَ احسان خلاص کړی
ساتند ویه او پالونکے، زمونږ ه په دنیا دے
لوے الله دے لوے الله دے

مستغنی دے بې پروا دے، بې خطا دے نښهٔ زیبا دے
لوے طاقت دے لوے طاقت دے، انس و جنّ ئې په ثنا دے
لوے الله دے لوے الله دے

دَ قدرت کارخانه لویه، دَ سائنس عقل محدود دے
هر راز ئې چې افشان دے، لا محدود بې انتها دے
لوے الله دے لوے الله دے

* * *



چې د کله نه مې اولیدو وجود ستا
هغه ورځ راسې په عشق کښې شوم نابود ستا

که د ذرې حال مې پوښتې مه ئې پوښته ته
تېکېدلے دے په مینه شین کبود ستا

هیڅ لحاظ در کښې د پت پالو نیشته
څه دې خوئ زما په حق دے د یهود ستا

د بنا ستُه ځوانئ د برمه راګوزار شوم
څومره زوړ شومه په غم کښې ګوره زود ستا

چې د حُسن په تعریف کښې دې کسے کړې
تا د در نه دے شړلے لوئے مردُود ستا

ستا دَ حُسن دَ جلوو په لیدو هسک شوم
هغه هیڅ شو چې دیدن شو پرې مفقود ستا

دَ دنیا سلو لانجو نه بې پروا کړم
بس دیدار مې دے په ژوند کښې یو مقصود ستا

دَ ګلونو ښائست تت په رژیدو شو
په چمن کښې ئې لیدلے دے نمود ستا

سائلؔ هله خو کسانو په نوم یاد کړو
چې دَ حُسن په چراغ شو لوګے دود ستا

* * *

* * *

څومره خوند دے څومره خوند دے ستا لمر تا کښې اخوا دېخوا
څه نا سا په زړه ښائست کړو ناز ادا کښې اخوا دېخوا

د هجران خیږ مې واوریده په سره سینه اے ګلې
په قضا مې اوره کوره نن صبا کښې اخوا دېخوا

په زړګي مې درزا راغله درز شو پرېوت سر د لاندې
د څانګلې زلف لړزان شول په هوا کښې اخوا دېخوا

سرې شونډې سره ګلونه اننګې دې بهارونه
مړ د باغ بهار په طمع تمنا کښې اخوا دېخوا

ستا د زلفو سورې لاندې زما ژوند دے چې تېرېږي
رقیبان دې ویلې کېږي واویلا کښې اخوا دېخوا

وې ئې لرې ورک شه مړه ته څو بالکل لیوے ئې
ما وې زړه ته مې ارام شي ستا په خوا کښې اخوا دېخوا

په تېښه د سائېل دروي ستا د سترګو بانه غشې
چرته یو هم نه غورځېږي په خطا کښې اخوا دېخوا

نېټه: ۱۹۶۷ء

Created with Scanner Pro

* * *

نن په دې لور چې راننغلو يار زما
بندوبست روان دَ وژلو دار زما

چې زما په خوا کښې وليدو رقيب يار
راته څوړېن ناست دے په دې ديدار زما

گرد غبار ئې مقدس دے دَ سپو لو
چې راغلے په دې لار نګار زما

چې تاؤده ساړه دَمينې پکښې نه وی
داسې ژوند وايه لا څه په کار زما

څه به خوب وی دَ رقيب دَ ناکړدونه
چې په ستر کو کښې غړېږی خار زما

په خراج دَ بښائست هر څوک ئې مجبور دے
زړه ئې يوړو کوره څنګه جار زما

دَ هجران سېزه بادونو ساپېل وُسه
بيا به راشي په زړه بهار زما



چې د مینې تاؤ مې زړهٔ وسوهٔ فریاد کا
بې وفا اشنا مې زړهٔ په فریاد ښاد کا

زړهٔ سوخته په هغه دم زما په حال شي
کهٔ خبر ښکلې اشنا د سحر باد کا

د غم جوکې ئې په زړهٔ زما اخته دي
یو لحظه د خوشالۍ دې په ما زیاد کا

د ښهٔ شعر بیان هسې گران مشکل دے
لکه مور لویه خوارۍ چې په زوزاد کا

هر اندام دې د بدن هسې روغ شوے
د قدرت د کارخانې د صنعت داد کا

هسې باور ئې په پښتون وکړی نشته
چې سائل به پس له مرگه هم څوک یاد کا



لکه زړهٔ زما په غم کښې دَ جانان ړوب
هسې رنګ لاله په وینو دے پرېشان ړوب

دا شفق نهٔ دے دَ سترګو بهیږ وینې
چې ګړے مې په وینو دے آسمان ړوب

سروې سر دَ فخر ښکته کړو خفه شوه
چې اشنا ئې زما ولید په خفګان ړوب

دَ دنیا دَ چارو هیڅ پروا مې نهٔ ده
ستا په مینه فکر مند یم هر زمان ړوب

دولت واړه منتقل شو رذیلاؤ ته
دَ معاش په تالاش وینم ټول خانان ړوب

ستا دَ سترګو مژګان تول مې په زړهٔ ووری
دَ تیرهٔ غشو دې ډک واړه کمان ووب

چې دَ هجر غم زما په غوږو وشو
په ژړا مې راشه وګوره چشمان ووب

ستا دَ مینې داؤ ګټل زما ارمان دے
کهٔ هر څهٔ زما لاهو شي په تاوان ووب

هیڅ دریغ ئې دَ ساپیل په رتل نهٔ وی
کهٔ ساپیل ئې دَ کتو وی په ارمان ووب

* * *



چې یو ځل مې ستا لیدلی نازنین لب
بیا قسمت کښې زما نهٔ وو ماه جبین لب

کهٔ دَ حورو لب وي هسې په یالا کښې
ګنه نشته بل په دې روے زمین لب

دا ئې لب دي یا سرهٔ زر دي کهٔ یاقوت دي
چې نزدې شوم خوشبوئي ئې دَ یاسمین لب

دَ اشنا دَ ښائسته لبو منت یار یم
چې پرانیزي ئې په حق زما تحسین لب

چې زما خلاف چا ژبې وې پرانستې
نن په داګه ئې ښهٔ سپک کړل آفرین لب

لکه ستا شونډې همېش ترو تازه وي
داسې نهٔ دي په تږه دَ اباسين لب

اصل نسل ئې معلوم نهٔ دے چې څوک دے
دَ اصيل خلاف سپړودې نن کمين لب

په محفل ئې دَ جادو اثر ورخور کړو
چې خبرې ئې اغاز کړې په مهين لب

ساپِل پوې نن ستا دَ مينې په اظهار شو
ستا دَ سترګو رموز ښائي رون جبين لب

* * *

* * *

ستا دَ دره نه چې راتلمه په ارمان ځې
دَ سوزنده زړه اهونه وو روان ځې

ما وې نن دې یا صبا به زما یار شي
کړېدمه، ترنېدم په دې ګومان ځې

ننګ حیا نه په رټ رټ ژړېدې نشم
ژړغونې هر زمان یم په چشمان ځې

دَ بنا نُسته وُ په ظلم حال دَ عاشق ګوره
مجسم تصویر ولاړ ورته حیران ځې

دَ دنیا په زارو سترې مې زاره شوه
دَ دوستۍ انکار اقرار نه هر زمان ځې

بلبل هسې واوېلا ده جوړه کړې
دَ دنیا په چمن سوزي پتنګان ځې

هېڅ ئې طمع دَ خېر نشته دَ بنا نُست نه
ګوره ناست ئې په کوڅه دې سائلان ځې



چې زما د یار په قد يې نظر پرېوت
د نښتر په ونه هلته تندر پرېوت

د نرګس سترګې له شرمه شوې راټيټې
چې نظر يې د ګلرخ په مخ بر پرېوت

ورشئ لاړشئ د لاله نه تپوس وکړئ
چې په زړه يې د سروشونو اثر پرېوت

ستا د مخ د حُسن تاب يې راوړے نهٔ شو
بدر ګوره چرته هلته په غر پرېوت

نن په ګلو کښې د زلفو خوشبو نهٔ وه
نسيم هسې په چمن سحر ور پرېوت

دَ اسمان لمنې هسې څو سرې نهٔ دی
څو دسماله مې دَ زړهٔ دَ پرهر پرېوت

چې دَ حُسن په خېرات دې کړو لاس پورې
داشه گوره يو ملنگ دې په در پرېوت

دَ گل مخ ښاښته رنگونو په دوکه کړم
دَ غم غر مې ناگهانه په سر پرېوت

دَ رقيب غوغا يوازې په ما نهٔ ده
دَ سايل ښانې سوانگرے په شر پرېوت

يادکېرنه :- دَعبدالحميد بابا دَيو غزل په قافيه "رديف"

* * *



ښهٔ تور تیپ زلفو دَ نمر پهٔ چشمان راوست
یو خندا په باغ بهار دې خزان راوست

لا پوره سپېره دې کلي دَ ځوانۍ نهٔ وه
یو شرق دَ مینې باد و باران راوست

ستا لیدو کښې دَ جنت هسې لذت دے
لوئے الله مې په قسمت ښهٔ درمان راوست

دَ قدرت دَ کارخانې په کار حیرت دے
چې ئې تا غوندې پیدا په زمان راوست

چې دَ باغ په ښائسته گلو مې نظر شو
تصوّر مې هغه شکلے جانان راوست

دَ قیامت په هیبت تا په غرغره کړم
چې په هیره مې ستا نوم په دهان راوست

یو طرفته ئې ناصح په بل رقیب دے
عشق مې ربه تا دَ جهل په میان راوست

سائِل ستا دَ در ملنګ کچکول په لاس شو
چې دې زړهٔ ورله دَ مخ په فرمان راوست

***

# قطعه

مینه غواړی قربانی دَ سر شیندلو
هسې مهٔ وایه مئین یمه مجنون یم

خدائے دې خوار کړه هیره دې خپله نشته
په حجره کښې پروت تا وے چې زهٔ پښتون یم



ستا هرې ادا باندې قربان دے زما روح
تاته چې زۀ ګورمه شادان دے زما روح

زلفې چې خورې شوې په فضا کښې دَ صنم
ګورمه زۀ وينم په لړزان دے زما روح

ښۀ وائې چې مۀ راځه بيا بېرته په دې لار
ستا په تورو سترګو جاودان دے زما روح

هر ځاے کښې بهار دے مارغان وينم په نغمو
يو زۀ يمه خفه يم په خزان دے زما روح

يا تۀ زما زما وې هر چانه بې پروا وې
يا مانه لرې لاړې نالان دے زما روح

ستا دَ حُسن کار دے چې رحم کرم وکړې
ستا په سوچ ملال چې هر زمان دے زما روح

تۀ ئې زما مينه زما زړۀ زما ځيګر
ستا په حُسن ځان زما قربان دے زما روح

ساحل دا کۀ بائيللې جوارې ستا دَ يارۀ
اوس مې هم ياد بېږې په ارمان دے زما روح

نېټه : ۱۹۷۲ء

* * *

چې د سرو لعلونو کان دې شوې ځې
د نظر مې ګران ګوزران دې شوې ځې

په ژړا معصوم ارمان شولو زما
چې نازک حُسن عیان دې شوې ځې

دا خوف وو چې بنا سُت دې تالا نشي
کاکل ګوره چې باغبان دې شوې ځې

بلبل شوې نغمې دا ئې ستائي تا
چې د ګلو ګلستان دې شوې ځې

تۀ ځې چې په خولو ګورې اُے ګُله
خوار مئین دے چې ګریان دې شوې ځې

تور تیپ مې تصوّر کړو تورو زلفو
د منزل میدان روښان دې شوې ځې

اسویلی ئې چې غزل شي ستا په یاد
د سائل دغه ارمان دې شوې ځې

---

٢٨ جنوري ١٩٦٢ء بمقام حجره عبداللطيف خان د رائټرز ګلډ په اجلاس کښې واورولے شو.

۱



نن مې ولید دَ اشنا ښکلے زېبا مخ
دَ انوارو نه یو نور ئې دَ رڼا مخ

دَ کوهِ طُور جلوؤ کانې رایاندې وشوې
عقل هوش مې شو بې خوده په ضیا مخ

تمامې ورځ په طلب دې سرګردان شوم
خبر نهٔ یُمه لیدلے مې دَ چا مخ

دَ یارۍ دوستۍ دَ پت پالل ئې نهٔ زده
بیا به څرې څرته لاړ نشم په دا مخ

دَ بهار دَ ګلو حُسن شرمنده شو
چې داخل ئې په چمن شو دَ ښکلا مخ

دَ دنیا غم مې ډېره په اننګو شوے
څهٔ الوت مخالف دے دَ هوا نه

دَ سینې دننه غم ئې په زړهٔ پاڅی
خود به ګوری زیر زبیښلے دَ شیدا نه

دَ دنیا دَ ټول مخونو حاج مې واخیست
یو هم دومره ښائسته نهٔ دے لکه ستا نه

دَ ښائسته ؤ مخونه واړه پیکه نه شول
په سیالی کښې برے بیا موند دَ شها نه

زیړ الوت رنګ ئې ګوره چې مئین دے
په محفل کښې ئې نیولے دَ ژړا نه

دَ تنها ژوند ئې تېوس سایل نه مهٔ کړه
لېونے لېواله ګوری دَ اشنا نه

یادګیرنه:- دَ عبدالرحمان بابا دَ یو غزل په قافیه ردیف



ستا د مینې په درشل مې قدم کېښود
هر قدم مې راست په در د ارم کېښود

بیا پېرو راته خوره د سکون غېږ کړه
چې مې نخ د نړۍ پښم په فم کېښود

در دیوار ئې مقدس وو د سپولو
ما چې ګام دې د محلت او په چم کېښود

ټول ګلونه په تعظیم زما د یار شول
نرګس سر ورته په فرش باندې خم کېښود

نور به مینه کښې خوشحال وی زړه غمژن یم
چې زما په زړه دې فکر د غم کېښود

اسمان ټیټ په اُفق باندې چې تهٔ راغلې
په نامهٔ ئې درته لاس هغه دم کېښود

چې ښکارې سترګې ئې ستا په نظر راغلې
آهُو مخ ترې نه دَ شرمه په رَم کېښود

دَ سَائِل دَ زړهٔ په خونه دې وېر ګډ کړو
چې تور خال دې په تندې باندې سم کېښود





دغه ژوند مې چې تېرېږي هسې زر زر
دَ سیلۍ شانې چلېږي هسې زر زر

وایُم ځان مې ترې لوګے دَ هر قدم کړے
چې راتګ یې پېرزوکېږي هسې زر زر

چې مخ پټ کله بهر کړي دَ بُرقعې نه
دا په ځهٔ مانه شرمېږي هسې زر زر

دَ اشنا دَ راتلو زېرے دې څوک وُکا
چې مې ښۍ سترګه رپېږي هسې زر زر

اراده یُې زما حق کښې ښهٔ نهٔ ښکاري
دغه زړهٔ مې چې درزېږي هسې زر زر

خپل گناه خطا معلومه ماته نهٔ ده
چې ئې نیت راته بدلیږی هسې زر زر

دَ ایټکو نه دې معلومه زما حال کا
په زړهٔ یاد مې ستا وریږی هسې زر زر

ستا دَ سترګو زنبل غشی تیرهٔ وُلی
دَ مئین په زړهٔ ښخیږی هسې زر زر

لږ خو حال دَ سایٔل وپوښتئ اے خلقو
چې په مینه کښې رټیږی هسې زر زر

* * *



دا مې يار کۀ مې دلدار کۀ دلربا لاړه
دا مې ساه دَ بدن لاړه کۀ اشنا لاړه

چې په ځيس ځيس مې کتل ورته په ترخ کښې
چې ئې سترګې برابر شوې په خندا لاړه

چې نظر دَ باز نظر ئې په ښکار پرېوت
دَ سينې نه زړګے پورته په هوا لاړه

يو ښائسته وې چې ځان ځاے کړې دَ چا زړۀ کښې
کۀ د هر ښکلي دې په مخکښې هزار ها لاړه

چې ئې مينه پخپل زړۀ کښې زما نۀ وه
نو بيا ولې زما مخې ته بيا بيا لاړه

نن ئې بنسهٔ په قهر ووې بیا رانهٔ شې
دَ بدن نه مې روح ووت په قضا لاړه

دَ راتلو وعده دې وکړه پوره نهٔ شوه
په طمع انتظار بېګا سبا لاړه

هر یو ګل دَ لغې پورته سر لیدو ته
چې دَ ګلو باغ ته ګل شانې زیبا لاړه

دَ غر سر نه دَ اِشارو سرې وُنبکې
چې زما حال ئې لیدلے په ژړا لاړه

نن ئې اورېدل ټول خلق زما حق کښې
دَ مزغو نه مې سوچونه دَ سودا لاړه

دَ ساتیل دَ زړهٔ ارمان پاتې شو زړهٔ کښې
چې دَ خوا نه ئې جُدا ګلِ رعنا لاړه

* * *

چې دَحد نه مې په هور ته دَ جانان خوښي
په دنیا مې هسې نه دے بل انسان خوښي

دَ شیرین اشنا دَ خولې پستې خبرې
دا په نرمه ښائسته ژبه مې بیان خوښي

په منبر چې هر وخت حورې غلمان ستائي
په پاک ځائے مې دا تقریر دَ مُلاجان خوښي

خلق وائي گل په بوټي کښې مزه کړي
ستا په زلفو کښې چې پروت دي ټول گلان خوښي

ما وې زه په تا مئین یم زما خوښې ئې
وې ئې پرېږده دغه خپل فضول داستان خوښي

په ترتیب دې تورې زلفې، دروځې ستر گې
په شرو شونډو کښې مې سپین ښکلي دندان خوښي

ستا دیدن ته یوساپیل دلته راغلے
وې ئې نه دې زما دلته ساپېلان خوښي



نهٔ مړېږي په جایداد او په دولت حریص
په تور و خاورو موړ شي په رحلت حریص

دَ وفا طمعه ترې مهٔ غواړه هیڅېري
چرته نهٔ لري دنیا کښې صداقت حریص

کهٔ ته وائي چې حریص به زما خپل شي
منکرے دَ شیطان لعین لعنت حریص

لوُټ تالان دے شر فساد کهٔ ډېر قتلونه
روان کړو په دې زمکه هر بدعت حریص

کله یو نه پوُله را کاږي بیا بل نه
دغه ژوند دَ بد حرص دَ بد فطرت حریص

چې دَ بل په حق حملې کوي سائېله
پرېشان به وي ټول عمر تر قیامت حریص

* * *

دَ کوڅې هر مور ته کورم ستا په طمع
دَ انتظار وخت که لنډېږي دا په طمع

زهٔ په طمع طمع اوچ شومه په طمع
وي ئې، مهٔ لاره څاره زما په طمع

هغه طمع انتظار څومره مزه کا
چې تېرېږي دَ محبوب اشنا په طمع

چې ژوندون کښې طمع نهٔ وي څهٔ ژوندون دے
تېره ؤم ئې دَ ښائسته زیبا په طمع

ستا دَ زلفو دَ خوشبو په انتظار یم
په اوږدو دې دَ سحر هوا په طمع

دَ گل باغ سېل ته را او وته چمن ته
ټول گلونه دي دَ گل رعنا په طمع

بل څوک نهٔ دے همسائېل دے بنه ئې وینم
چې ولاړ په سرهٔ غرمه دَ چا په طمع



چې په لومه کښې راګیر شي د کاکل ځوک
بیا به نه وزي په زور وي که په چل ځوک

که پښتون په اتفاق شو سور مغل ته
وایه نه خلي تري یو غر هم د چا نچل ځوک

لکه زه دي تابعدار یم محبت کښې
پیدا نه به شي خادم دي هسې بل ځوک

د تقدیر لیکل به کله بدل نه کړي
که ځان ستړے په تدبیر کړي یا په زغل ځوک

هر منزل ته سړے اورسي اسان وي
که همت ځان کښې پیدا کړي د ورتلل ځوک

چې ټول عمر ئې تمام په یو طلب کړو
دا د مینې په درشل ولاړ سائل ځوک



ډیر زیات دي په دنیا کښې اشرار خلق
ډیر کم وینم دنیا کښې ابرار خلق

شر فساد ئې په دې زمکه دے جوړ کړے
قتلول دي او لوټل دي په جار خلق

دا جامه مې پاکه او ساتې له چرکو
په لمنه مې لېو شوي مردار خلق

خدایه دا خلق په لوے سیلاب لاهو کړې
چې ترې ګرځي په دنیا کښې په دار خلق

بد معاشې دي په هر کلي کښې په زور دي
شریفان کړه په سر دي فرار خلق

شریفان واړه نابود په زمانه شول
دَ بد اصل دَ جاهل نه ازار خلق

چې ئې پلار په ټوک ډوډۍ چارو وهله
دَ حرام په ګټو وینم بسیار خلق

دَ کم اصلو دور دوره ده نن سائله
اصیل کله شي موندے په زیار خلق





بیا له ځانه ورک شومه د چا په خیال
زه شوم بې قراره د اشنا په خیال

تا چې کړه بې واره راګوزار غشي
نه دے یو خطا تلے زما په خیال

لاړه بې پلوه نن زما مخکښې
نن جوړې راوتې د وفا په خیال

زه که یمه شمع د هجران د شپې
نه به مرم وصاله د سبا په خیال

غوث یم ستا د ورځو په تېرو تورو
پایم د سرو شونډو مسیحا په خیال

زه چې څه خیره دَ مطلب کوُم
هوَ ګې وی یا وَښتې دَ اشنا په خیال

لږ خو دَ وصال په میوُ موړ که ما
ډوب دَ خیال دنیا کښې یمه ستا په خیال

زهٔ چې کړم ژړا او ته خندا کوې
وایه څهٔ انصاف دے دا دَ تا په خیال

څوا کښې دَ رُخسار وخوړم تور ښامار
زه چې ور روان شومه دَ غلا په خیال

راشې کړل غمونه په انبار انبار
ما چې کړو لاس پورته دَ دعا په خیال

زلفې زولنې سانپُل ته واچوه
دا چې ورله راغې دَ سزا په خیال

یادګیرنه:- په ۳/۱۲/۱۹۶۱ دَ راښتهٔ زکلو په یو اجلاس کښې بمقام باغیچه عبدالطیف خان اورک زی یانه مانې واوروَلے شو۔



دَ پلوُ خوا کښې چې اشنا اوکتل
ژوندون کښې ما هم په خندا اوکتل

زړهٔ په صِله کښې ورته ورکړلو ما
چې مې اشنا په ناز ادا اوکتل

غلا دې معلومه شوه دَ پټې مینې
لېره چې لاړې تا په شا اوکتل

دَ رقیب خوا کښې چې ولاړ وو اشنا
ځکه ئې ما ته نا اشنا اوکتل

زاهده وعظ دې اثر نهٔ کوی
عیبونه ما ستا دَ قبا اوکتل

په ښونې مینه دې واړه وُلم
په ښونو سترګو چې تا اوکتل

اوس به څهٔ طمع دَ وفا لرمه
تا مې وفا ته په جفا اوکتل

څهٔ شُو څهٔ حُسن خو دې کم نهٔ شُو
کهٔ چا پټ پټ درته په غلا اوکتل

دا مُین توب نن ښونتوب شو ګلې
تا چې سائِل ته بې پروا اوکتل

یادګیرنه:- ۱۷/۱۲/۱۹۶۱ء داشُتهٔ زمکلهٔ اجلاس بمقام باغیچه

عبدالطیف خان اورک زی (مرحوم)

* * *



نن په زړهٔ مې دَ اشنا يادونه راغلل
دَ زړهٔ تل ته مې زاړهٔ دردونه راغلل

چې سرې شونډې غابښ رخسار دې را په زړه شول
تخيّل کښې مې ښائسته ګلونه راغلل

چې زما دَ اشنائۍ نه لاس په سر شوې
دَ تاوُ سوي اسويلي اهونه راغلل

نن مې وليدو رقيب چې ستا په خوا کښې
دَ افسوس نه مې په زړهٔ غمونه راغلل

چې مې ګل په رژېدو وليد چمن کښې
دَ ښائُست په عارضې ژوند سوچونه راغلل

په تېراه زما دَ اوښکو باران اوشو
په باړه کښې دَ سېلاب موجونه راغلل

دَ خزان مړاوُ ګلونو کښې ساه راغله
دَ راتلو دې په دې لور خبرونه راغلل

ستا راتګ دَ نوی ژوند اثر ښکاره کړو
دَ پرهر زړګی زاړهٔ زخمونه راغلل

چې هر چا څخه ولاړ خوشال خندان ئې
دَ سائل په برخه ستا ظلمونه راغلل

* * *



خپل مې نهٔ کړلو تر اوسه پورې يار خپل
کهٔ هر څو ئې زهٔ منت کړم په بار بار خپل

زهٔ په سرو سترګو ژړېږم دا خندا کړي
داسې نشته لکه زهٔ لرم نګار خپل

په ټول عمر يې له تا نه منع نهٔ شم
څو اونکړم ستا په مينه ځان په دار خپل

دا په سترګو کښې خندا کړي ماته ولې
راته وايه حال دې اوښايه په چار خپل

سائېل تسليم کړل په سر سترګو ستا ظلمونه
بس دے پرېږده د جفا دغه وران کار خپل

باغيچه عبدالطيف خان (مرحوم)

۱۹۶۱ء



محبت کښې مې لیدلے دے ناکام سائل
ځکه ګرځي سر وهلے شا مدام سائل

چې نن قدر ئې زما د مینې اوکړو
دواړه لاسه په تندۍ دی د سلام سائل

منت بار شکر ګذار د رببار اوسه
چې ئې پټ یوړو اشنا ته ستا پیغام سائل

تا نه هیڅ د وفا طمع امید نشته
ستا د لاسه کړېدلے دے مدام سائل

لېونے شو لېونے ګرځي په دشتو
هیڅ ئې پته معلومه نه ده د مقام سائل

بل ته واٸی مینه مکړه لیونتوب دے
موړ به کله شی په مینه دَ ډک جام ساٸیل

چې ګلونه ترې ځی پټ ساقی په پاڼو
نمر سپوږمی هم ترې شرمیږی دَ ګلفام ساٸیل

چې دې باج خراج دَ حُسن ځیل طلب کړو
دغه حکم دې تسلیم کړو ستا غلام ساٸیل

ساٸیل څنګه به په لږ دیدن مړیږی
ډیره لږه درته اودریده په بام ساٸیل

نهمه ستمبر ۱۹۶۴ء

* * *



زهٔ تورو زلفو دَ شها اوخوړم
دہرو غمونو دَ اشنا اوخوړم

تا دَ پلوُ خوا کښې په تا اوخوړم
چغې وهمه چې هم تا اوخوړم

طبیب مې نور څهٔ علاجونه کوی
خبر څهٔ نهٔ دے ستا ادا اوخوړم

بې خوده پروت په ځان پوهېږمه نه
دا کوم مرض کومې قضا اوخوړم

وایم دہر څهٔ مې درته اووېلے
زهٔ چې خلې خپلې دپا اوخوړم

ستا ناکړدې به ټولې يو سمه خېږ
خو دَ رقيب ناخوالو لا اوخوړم

ملګرو مهٔ کوئ لټون راپسې
زهٔ لېونے شوم مه بېديا اوخوړم

تهٔ دَ ځوانۍ مستې خندا اوخوړې
زهٔ سائيل ژارمه ژړا اوخوړم

نېټه: ۱۰/۱۱/۱۹۶۱ع
دَ رائټرز کلب په اجلاس کښې

* * *



کومه ورځ وه چې په تاباندئ مئین شوم
خوشالي خندا مې پرېښوده غمژن شوم

د انسان په قدر هله خبردار شوم
چې د عشق په غم لړلے لوغړن شوم

ستا په هجر که مې اوښکې څو ګوې نکړې
هله وايه مينه نه وه دروغژن شوم

چې خوشبو مې په جهان د عشق خوره شوه
د هر چا په ژبه ياد شومه سمن شوم

ستا د زنې تصوّر نه وو غضب وو
چې په کنده کښې اړتاو دې د ذقن شوم

ستړګو حال زما دَ مینې په جار اووې
اعتماد مې لاړو ختم شو بدظن شوم

زما ستا دَ مینې راز پټ وو هر چا نه
دَ ک محفل کښې راز ښکاره شو ختورن شوم

زهٔ دَ مینې په چل پوې نهٔ وم چې څهٔ دی
ستا دَ مینې په دریاب کښې لمبوزن شوم

۱۹۶۸ء
دَ اتهٔ شپېتم په کال سخته ګرمي ده
دا غزل مې ځکه اووې دېرشن کلن شوم

زهٔ ساپُل دَ چا په یاد وشناخت نهٔ وُم
ستا په مینه کښې ښکاره شومه روشن شوم

* * *

ښکلے مخ چې مې ستا اولیدو بې هوش شوم
ستا د مینې د مخمور شراب په نوش شوم

عقل لاړو زړهٔ ئې پرېښوم مرور شو
چې د مینې په جذبو شومه پرجوش شوم

ستا په سترګو چې مې زړهٔ پرهر پرهر شو
هغه وخت راسې مې ګوره چې خاموش شوم

هله پسته په ژړا شوم د سرو وینو
چې جدا دې د خوږې ښکلې اغوش شوم

تا ته یو ځاے زړهٔ ولاړیم کله بل ځاے
د دیدن په ارزو ستا خانه بدوش شوم

ستا خبرې مې د لرې اورېدلې
همه تن دې اورېدو نه همه گوش شوم

مينې وتوكل هر څۀ له خپله مخه
كۀ مې عقل زغره تن شو زغره پوش شوم

ما هر حكم ستا په سر سترګو منلے
نۀ پوهېږم چې بيا ولې فراموش شوم

پلار مې نوم خواجه اېښودے زۀ سائل شوم
دَ محفل دَ رنګينو نه چې روپوش شوم

* * *



ښکلې مخ مې چې ستا اولید وبې هوش شوم
ستا د مینې د مخمور شراب په نوش شوم

عقل لاړو زه ئې پرېښوم مرور شو
چې د مینې په جذبو شومه پرجوش شوم

ستا په سترګو چې مې زړه پرهر پرهر شو
لمغه وخت راسې مې ګوره چې خاموش شوم

هله پسته په زړا شوم د سرو وینو
چې جدا دې د خوږې ښکلې اغوش شوم

تا ته یو ځاے زه ولاړیم کله بل ځاے
د دیدن په ارزو ستا خانه بدوش شوم

ستا خېرې مې د لرې اورېدلې
همه تن دې اورېدو ته همه گوش شوم

مینې وتوکل هر څه له خپله مخه
که مې عقل زغره تن شو زغره پوش شوم

ما هر حکم ستا په سر سترگو منلې
نه پوهېږم چې بیا ولې فراموش شوم

پلار مې نوم خواجه ایښودې زه سائل شوم
د محفل د رنگینو نه چې روپوش شوم

* * *



څۀ شو په سترګو دې لیدلے نشم
دَ خیال دنیا نه دې اوېستلے نشم

زۀ دې هر حکم په سر سترګو منم
حُسنه! پښتو نه اوړېدلے نشم

چې لیونے یم ما په کاڼو اولئ
کوڅې دَ یار نه جاروتلے نشم

دَ هجر بوږ دَ ږېره لرې وینم
وصاله خاندمه خندلے نشم

ستا ستغې سپورې مې په سترګو قبول
خو دَ رقیب وینا زغملے نشم

ستا چې خوښه دَ سایل هم خوښه
بسمل مارغۀ یم الوتلے نشم

٥/٤/١٩٦٢، دَ راستهرز کلاله په اجلاس کښې



چرته دې غمونه زهٔ غمونه لټوم
کوم ځائے دې اهونه فریادونه لټوم

خوب کښې وې بېګا دَ اشنا زلفې زما لاس کښې
ویښ شوم لېونے شوم اوس خوبونه لټوم

ځکه سودائي شومه همدمه دَ یار یاد کښې
خیال کښې دَ اشنا چې زهٔ خیالونه لټوم

خاموش یم که ځو ځلې په خندا شوې راته تهٔ
جُوسه کښې دې لا بیا هم زهٔ رعبونه لټوم

تا راته له قهره په چیچلو شونډې سرې کړې
زهٔ پکښې دَ مېو ډک جامونه لټوم

هر څوک په دنیا کښې د راحت په تکل کرځي
زړه یم هغه زړه یم چې دردونه لټوم

مراد مې پوره نه شو دې ورانۍ ابادۍ کښې
څم میړو ته او څم قسمتونه لټوم

خدایه زړه دا جفا به دې وفا شي او که نه
زړه دې په ظلمونو کښې نازونه لټوم

زما لیدو سا یېله بس روغ دوزخ چې وینې
زړه ئې هر ادا کښې جنتونه لټوم

نیټه: ۲۲/۷/۱۹۶۲
راشتېر زکلو اجلاس

* * *

چې لېونے یمه اوس ګرځم
خود به د کلې نه بهر ګرځم

د چا د مینې په یو خوږ خیال کښې
زه سر وهلے در په در ګرځم

نن مې اشنا راته اشنا اووې
رقیبه اوس به په تا بر ګرځم

چې ستا مینه مې په ځان ودرېده
نو بې خطره له هر خطر ګرځم

چې هېڅ خوند او هېڅ مزه یې نشته
په طلب د هغه ثمر ګرځم

زه خو په قهر شه اشنا ماته
چې دې کوڅې ته لړو بر ګرځم

ساګله خلق مې لېونے بولي
خیال کښې مدام د یو بشر ګرځم

بانګ خرم چاپ، ۲۲/۶/۱۹۶۳ء

* * *

ستا د زلفو زولنې دي چې ئې وینم
غم لړلي درنې شپې دي چې ئې وینم

چې مې یار ترې نه ځي بل پلو ځار باسي
ځکه بې ځایه مې ګیلې دي چې ئې وینم

چې دیدار مې هم د یار خوا کښې رقیب شي
نا کړدې د زمانې دي چې ئې وینم

چې بې ترسه په ښتو زما کوزار کړي
د عشق ګرانې مرحلې دي چې ئې وینم

ستا د لاسو نه چې جام د مینې پرېوت
لوټې لوټې میکدې دي چې ئې وینم

که دې نه وینم اے لرې مېشته یاره
د یادونو سلسلې دي چې ئې وینم

ساېل څنګه به اوس ستا په خوله یقین که
ماتې ستا ټولې وعدې دي چې ئې وینم

۲۳/۴/۱۹۶۳ء راشتهٔ زکملهٔ اجلاس (۳۱)

* * *

ستا له مینې مې قسم دے بس جاروځم
امانې مصیبت غم دے بس جاروځم

چې لیدل پکښې ستا نښته زړهٔ يې څهٔ کړم
ځول ازغي دي راته چم دے بس جاروځم

دَ وفا توقع نشي ترې لېچرې
کوڼ لوګے لهم کله سم دے بس جاروځم

وایم ستا په جور جفا مې شوه مَلا ماته
وائي "دا لا څهٔ ستم دے" بس جاروځم

دَ ژوند فصل مې دَ تندې نه اوچېږی
اوچ دَ سترګو نه مې نم دے بس جاروځم

چې دَ مینې منتونه مې نهٔ اوري
له ابوجهل په څهٔ کم دے بس جاروځم

سائیله خوند مزه يې نشته لاس اخله
خدائے خېر خنګه صنم دے بس جاروځم

نښته ۱۹٦۳ء



اے صنم ستا ستم — دم په دم نهٔ یم ګرم

کړو رقیب تا قریب — بد نصیب زهٔ غریب
بنسهٔ کرم بدریبم — اے صنم ستا ستم

بېوفا۔ کړه جفا — ستا خندا زما ژړا
ژوند وینم دېرشوکم — اے صنم ستا ستم

ستا بشر۔ کړو اثر — زړهٔ پرهر۔ دے خطر
سر مې خم۔ ږده قدم — اے صنم ستا ستم

* * *



زه دیدن پسې رندېږم نه یې وینم
دَ هجران په اور وریتېږم نه یې وینم

تا تري شاني لوړ قد یه ښکلیه یاره
څه له وایې نه ښکارېږم نه یې وینم

دلاسه ساتلي زړه نن بې قابو شو
هېڅ په بند یې نه پوهېږم نه یې وینم

محلونه مې دَ زړه رالوټېږي پرېوځي
له خبرو یې خبرېږم نه یې وینم

بې قراره بې ارامه دل افګاره
شپه او ورځ پسې ژړېږم نه یې وینم

ما دَ زړهٔ په غوښو لوئ کړو رانه لاړ شهٔ
په حسینو څهٔ نازېږم نهٔ ئې وینم

چې بې خیاله ئې تصویر په خیال کښې راشي
تول ریږم مه لړزېږم نهٔ ئې وینم

دَ رقیب په خوا کښې شا مدام حاضروي
په ارمان ارمان پسخېږم نهٔ ئې وینم

دَ یو حُسن په طلب ستړے ستومانه
په ژوندون باندې کړېږم نهٔ ئې وینم

تورې زلفې تورې وروځې مار لړم دي
نشه نشه بې خوده کېږم نهٔ ئې وینم

سپېره ځواني مې ستا ځواني نه لوګے
شنه دَ هوزه شوم سوزېږم نهٔ ئې وینم

په قسمت دَ ژوند او یهٔ چرته سائیله
دَ غم تور بحر ته لېږدم نهٔ ئې وینم

مارچ ۱۹۲۶ء



ستا دَ زلفو مار چیچلے یم کۀ نۀ یم
تا دَ عشق په دام نیولے یم کۀ نۀ یم

چې دَ مینې په نُوم سوال کوُم شرمیږی
دَ خپل درة دې شړلے یم کۀ نۀ یم

چې بنا دُستة شکلې جُوسه دې راپه یاد شي
هوش و عقل نه وتلے یم کۀ نۀ یم

څۀ اثر وو څۀ جادو وو چې راکړ شوم
تورو سترګو دې بللے یم کۀ نۀ یم

ستا په مینه لړونے اوتر چې ګرځم
تا په دې حالت لیدلے یم کۀ نۀ یم

نۀ چې وائې چې رقیب سره ګذران کړه
دۀ هم زۀ چرې زغملے یم کۀ نۀ یم

دَ نیغ نیغ کتو مطلب دې راته ښایه
دَ بڼو غشو ویشتلے یم کۀ نۀ یم

ما غوښتل چې درنزدې شمه ستا خوا ته
تا په سپک نظر کتلے یم کۀ نۀ یم

تلوسه مې یو په دوه ستا دَ لیدو ده
تا په تش وعدو ساتلے یم کۀ نۀ یم

دَ سائل په سوال خو بد رد پکار نۀ وو
هیڅ بې هڅه دې رټلے یم کۀ نۀ یم

* * *



ستا دَ مینې په چکر کښې چې راګېر شوم
هغه پسه په ژوندون کښې تېروېر شوم

نن مې زړهٔ په درزېدو نهٔ وو دا ولې
ستا دَ درد دَ کوڅې مخکښې چې راتېر شوم

دَ اشنا دَ ترېو تندې جواب مې نشی
دَ پښې پوُلې دشمن ته کهٔ زهٔ شېر شوم

ما دَ پټ دَ اشنایی سینه وهله
تا نه ولې په یو نهٔ خبره هېر شوم

خوشبوئی ستا دَ بدن مې تر سپېږمو شوه
مشک عنبر دَ اهمیت نه پرې ورتېر شوم

مینه تېپه او درېدله نوره نهٔ شوه
رویه دَ بې رُخئ مې ستا په خبر شوم

هغه ورځ دَ بې خوندۍ نهٔ وه نورځهٔ وه
ملامت دَ خلقو د اسې ووځې زېر شوم

سائل څهٔ اوکړي دَ هر چا جواب گران دے
دوه او درې رقیبان نهٔ دي کېر په دېر شوم



* * *

ستا په مینه چې رسوا شوم
د کور کلي د خندا شوم

زړه مې بایلودو پوی نشوم
د غمونو نه بوډا شوم

ریز مریز زما غیرت شو
چې سوالګرے د در ستا شوم

چې مې کیښود په در سر ستا
په قیمت کښې بې بها شوم

تخیل مې په پرواز شو
چې په یاد کښې ډوب د تا شوم

چې ارمان دې راپه زړه شو
سر په چغو په ژړا شوم

سایل تا ګورته روان کړو
شهید ستا په جور جفا شوم

* * *

ستا دَ مينې په التزام کښې مختورنِ شوم
دَ مينو په محفل کښې قدرمن شوم

لمله پسته يې دَ زلفو په بند کښې کړم
چې داخل دَ حُسن باغ ته شوم رهزنِ شوم

چې په زړهٔ مې ستا دَ مينې اور شو پورې
په فرياد په نعروسر صاحب سُخن شوم

يو ګلاب پکښې زما دَ زړهٔ کشش شو
چې ورکړه دَ باغ ګلونو په چمن شوم

دَ جنت حورې غلمان به درنه زار کړم
که يُو ورځې ستا دَ سروشونډو واکمن شوم

دا اثر دَ لبو نتوبه نهٔ دے نور څهٔ دے
په کندلو دَ ګريوان څيرې پيرهن شوم

زهٔ ساپِل ايله دَ ژوند په خوږو پوې شوم
چې ناظر دَ ښکلې مخ دَ ګلبدن شوم



په هر ځای د کائنات کښې اشنا وینم
د فطرت په درښنونو کښې تا وینم

د بهار په حسرت توئ شوي زما اوښکې
زه بلبل چې په چمن بې نوا وینم

هر منظر ته د فطرت چې ژور ګورم
زه په دې کښې ښکلې عکس د لیلا وینم

دغه ټول ګلونه ما په سترګو چاڼ کړل
زیبائي په کښې د ښکلې زیبا وینم

ستا د قد مخکښې ولاړ وو شرمسار وو
په قامت دې د چینار نه بالا وینم

دَ تسکین په بادشاهت ئې سرفراز کړم
دَ ښائست سورے دې زۀ دَ هُما وینم

دَ غرو څوکو نه چې سپینې چینې بهیږی
خپلو سترګو نه څو څاڅکی زړا وینم

په تندی خولې دَ یار ښکلې مرتې دی
یا کۀ پرخه په ګل پتو ښځا وینم

ګلاب ګېر په رقابت کښې دَ ازغو شو
ازغی ځځ مې په زړګی ښۀ رسا وینم

دَ ښائیل دَ خُورې زړګی چا تپوس اوکړو
دَ لاله سینه داغداره چې لا وینم

* * *



د نرو شونډو نرۍ شان مُسکا پېژنم
د زخمي زړګي علاج او دوا پېژنم

ستا د حُسن لېدل څهٔ وو تباهي وه
زهٔ دهشت د اشارو او ادا پېژنم

د پرېشان زړهٔ دمه وار مې نرے باد دے
شرارت ئې په وېښتو د صبا پېژنم

څُڅې چې ورشو تپوس اوکړو د مُلا نه لږ
دے هم وائي د سرو شونډو خندا پېژنم

ستا د زلفو نه خوشبويه معطره
په چمن روان انداز د هوا پېژنم

دَ گل هر پاڼه کښې عکس ئې جوړ ښکاري
دَ هر گل په شا منظر دَ اشنا پېژنم

دَ مئین زیړ رنګ به چرې غلط نهٔ شي
دردېدلې ئې په عشق دَ شها پېژنم

دَ خپل زړهٔ نه مجبوري ده که دانهٔ وے
دَ فطرت نه دا ظالم بېوفا پېژنم

ساحل څوک وائي مئین په لېچا نهٔ دے
په محفل کښې هغه ناست وار خطا پېژنم

* * *

* * *

دَ رقیب جور و جفا ذره ذره کړم
دَ شها ظلم و ستم چوره چوره کړم

دَ محبوب کانهٔ غوږ ونه ئې نهٔ اوری
کهٔ نعره ورته ولمه کهٔ سوره کړم

پس له مرګه کهٔ مې راغلې جنازې له
ستا کتو ته به کفن نه ځې بنکاره کړم

دغه وائې "لیونے دے نو رخهٔ نهٔ دے"
په منت ورته کهٔ شته خپله زاره کړم

زهٔ چې څهٔ وینم بس تا وینمه یاره
خوب په وینبه دَ بنا ئست دې نندارهٔ کړم

چې دَ مینې مې خواهش کړلو رسوا شوم
په غمونو تول لړلے جانانه کړم

تصوّر دَ حُسن کړان پرېوت سائېله
چې وحشت په دشتو سرزهٔ آواره کړم

* * *

په سر سترګو مې غم کړو دَ خپل يار تسليم
په ژوند کښې مې دَ ګل په ځای کړو خار تسليم

بيا څنګه دې زهٔ پند واورم ناصحه
چې کړو مې په رضا دَ مينې کار تسليم

اوس شومه ککړ شومه دَ هجر په تود باد
اوس څنګه ستا وصال کړمه بهار تسليم

ستا دَ حُسن رعب پخوا نه ما منلے
تهٔ به هم کړې زما مينه پخپل وار تسليم

نهٔ جادو ځې حُسنه! تهٔ دې يې رخه نه
کهٔ ما دې کړو هر حکم په ځار ځار تسليم

پخپل ځان مې جفا هم ستا منلې ده
خو تا نهٔ کړو زما دَ وفا کار تسليم

دَ ښو عشق دې اخوا د پخوا نهٔ شي
سائل دې په زړګي کړې هر ګوزار تسليم

چې په خوا کښې مې لیدلي دي خپل یارن
نه مړېږم په لیدو یې په دیدارن

ټول ګلونه د سپرلي په تعظیم ودرېږي
کروفر شوکت یې ګوري د سنګارن

نرګس ټیټ ورته خپل سر کړو په اداب کښې
څه په پاڼو کښې ګل ونغښت په سحارن

لاله لړې په صحرا کښې منتظر وو
د دیدن نه یې محروم شو زړه داغدارن

د ګلونو ښائست ټټ شو ستا په مخکښې
بلبل ځکه په چمن شو په چغارن

غرونو واغوستو سپین شال دَ سپینو واوُرو
هسکه غاړه په کتو مې دَ نګار نن

سرو چینار سرونه ښکته دواړو اووې
بس دَ قد سیالی ئې نکړو وایو جار نن

دَ ځنګل نه په یو منډه هوسۍ لاړې
چې اشنا کړې سترګې پورته په خمار نن

ساحلؔ ستا دَ ښائست ګلو لېونے کړو
چې خزان کښې حُسن وینې دَ بهار نن

* * *



په تورتم دَ شپې مې چرې سبا نشو
دَ فکرونو نه مې سر پورته لا نشو

په بېنو غشو دې لمسې کو زار او کړو
چې يو غشے تېر نه چرته خطا نشو

چې دَ حُسن په دام ونښتو راګير شو
مارغهٔ زړهٔ مې فرياد وکړو رها نشو

ستا دَ تورو سترګو تور مې په زړهٔ وُرى
په ژړا دَ سپينو اوښکو صفا نشو

دَ دنيا ستړې مې وکړې چې به يار شى
يا زارۍ شانله اشنا وو اشنا نشو

چې پېرې دَ رقيب کړمې ستا په لورشوې
ستا کوڅې ته مې راتګ بېرته بيا نشو

کهٔ مې سل ځله زارۍ منته اوکړل
مرور اشنا بُخله پرې زما نشو

دَ بدن خولو دې هسې معطر کړم
چې مې زړهٔ نور په نسيم دَ صبا نشو

دَ سائل په رټل هيڅ پروا خو نشته
خو پېرزو مې بد عادت په شها نشو

***



ستا حُسن زما زړهٔ چې راپاره کړو
هغه ورځے راسې غمونو بېچاره کړو

په کړنګ کندو کپړو واوُختمه
چې ستا عشق مې مل ملګرے سهاره کړو

چې زما په لید محفل نه بهر لاړې
زما زړه رنګ دې هرچاته چار ښکاره کړو

یار مې یوځې ښهٔ په راتګ وو ماشوم نهٔ وو
چې په بیا بیا ځې تپوس زما یاره کړو

چې دَ زړهٔ په تل کښې مینه ښهٔ زرغون شوهٔ
دَ اشنا په مینه زړهٔ مې اجاره کړو

ستا دَ مخ په دیدن موړ نشوم هیچرې
کهٔ مې وقف همه ژوند په نظاره کړو

دَ ګل مخ دې په کتو خولې خولې شو
شرمنده دې دَ قد مخکښې تاتره کړو

په دې سخت زړهٔ کښې دې هېڅ څهٔ رحم نشته
چې په لویو دې زما زړګے پاره کړو

ستا جلال جمال ئې اولیدو شاعر شو
ستا طلب دَ سائل شعر شهپاره کړو

* * *



چې په مینه کښې مې صبر نهٔ کوو
ګوندې غم نه مې څهٔ عذر نهٔ کوو

چې دَ مینې ور دې بند کړو ټول عمرې
آیا دا دې په ما جبر نهٔ کوو

دا زما پت و احسان بوله اشنا
ما دَ عشق اظهار په جَهر نهٔ کوو

خوشحال وُمه بې شانه دَ وفا نه
هیڅ بې هڅه یه مې فخر نهٔ کوو

دَ مینې چاپېر چل کښې اونختمه
هیڅ لحاظ مې دَ عشق بحر نهٔ کوو

ساپِل څخه کهٔ لیږه مینه ستا وے
بې موقعې به دې څهٔ قهر نهٔ کوو



چې مې کښېښودستا په لوری قدم رو رو
بيا مې اوليدو دَ حُسن اِرم رو رو

زړهٔ مې ټول په رېږدو او درزېدو شو
چې ورتلمه دَ اشنا په بزم رو رو

دَ رقيب په ضد مې هيڅ طاقت خو نهٔ وو
اوس ستومانه يم په دغه رزم رو رو

تهٔ دَ هر وعدې سوګند نه چې جاروځې
يقين نشته اوس مې ستا په قسم رو رو

دَ هجران دغه سُور ترق نمر ونو اوسوم
زهٔ بلد شوم په دې غم و الم رو رو

دَ قسمت لوحه مې ډکه شوه لهٔ غمه
فرښتو چې خوزه وو پرې قلم رو رو

هسې نه چې نازک خوب نه راښکار شي
تېر ېږدم به ئې په در او په چم رو رو

ستا په مينه رسوائي زما نصيب شوه
چې دې واخست دَ حيا مې برم رو رو

ته په لمسه دَ رقيب زما وژل کړې
هيله يوئې شومه دې اوس په عزم رو رو

ما ويستلې وه توبه ستا دَ ليدو نه
اراده اوس بدلوم دَ جزم رو رو

دَ خوشحال روح ترې خوشحال شو لوپه کورکښې
دَ پښتو سرخنه اوکړه اعظم* رو رو

سائېل ستا غمونو سر په واوېلا کړو
ستر ګې وچې مې شوې خلاصې له نم رو رو

---

* دَ سکوټرۍ تعليم، ايډيشنل چيف سکرټرۍ او چيف سکرټرۍ په حيث دَ محمد اعظم خان دَ پښتو دَ سرلوړۍ او ترقۍ کوششونه او خدمات دَ ستاينې وړ دي. دَ پښتو ډکشنرۍ پراجيکټ، پرائمرۍ ټيکسټ بک پښتو ټرانسليشن پراجيکټ. پښتو ادبي بورډ قيام. دَ خوشحال خان خټک او عبد الرحمان کمپليکس تعميرات دَ موصوف اهم کارنامې دي.

* * *

چې د غمې نه مې جدا شو جانان لاړو
د بدن نه لکه روح چې په ګران لاړو

چې په کور کلي وصال ئې بیا نهٔ مومم
نظر پورته مې په کوه په دامان لاړو

چې ئې کار بل د لمسون نه نور څهٔ نهٔ وو
ازمائښت نه چرته پټ او پنهان لاړو

نزاکت ئې چې د حُسن شو منکرے
د غرور نظر اوچت تر اسمان لاړو

ذهن سوچ دواړه ګډ او بې اسرې شول
زړهٔ په ټوقو کښې د عشق په داستان لاړو

تهٔ پوښتې چې په ما ولې تهٔ عاشق شوې
ستا ددې بیان نه فکر حیران لاړو

ستا د در درشل خو ډېره مقدس وه
سابئل ولې داسې سپک په ارمان لاړو



چې مې زړه دا ستا په مینه کښې اوتر شو
هغه ورځ راسې مې ځان په ځان خبر شو

عاشقانو مال سرونه په دوه کښېښول
یار ښکاره په ډول سنګار په کروفر شو

د اسمان پردې ئې لرې کړې بهر شول
خوبوله یار د ستورو په نظر شو

ننګ حیا ئې مانه یوړل ټول له مخه
نه پوهېږم اوس په څه دے مرور شو

دا مستي ئې ستا په سر نه ده نور څه ده
چې رقیب پټون وهلو راته نر شو

په نېزو ټوټے زړه مې شولو پورته
د ښو غشے په نخښه برابر شو

دَ فراق او بېلتون غمن راپاندې اوشو
دَ شپو باران له سترګو په دردر شو

چې په زړهٔ دې زما داغ دَ مینې جوړکړو
اُئنده مې نور مسکن اوس ستا په ور شو

دَ مئین په عشق کښې هیڅ دلجوئي نشته
دَ ټټوبو دَ څموزو ستا په در شو

څو کلونه دې په خواکښې یوه ورځ شي
دَ سرور په کیفیت مې طبع تر شو

څهٔ به پوهٔ شي په لذت هغه دَ مینې
چې نظر یې په دولت او زمین زر شو

سائل ستا دَ مینې جوش کښې لیونے شو
عقلمند و کښې په اوتو بوتو سر شو

* * *



ما له ورایه ستا دَ حُسن چې درشن کړو
لمغه ورځ راسې مې ځان په غم پمن کړو

دَ صحرا په سېل را اووت راشه ګوره
په ګلونو ئې ښائسته ښکلې چمن کړو

دَ مکېن نخرې ئې بيا ښکلې جلوې که
اور ئې ورته مې دَ صبر په مسکن کړو

ننګ حيا مې په رخصت شول تهٔ بخيل نهٔ شوې
مئين هسې دې رسوا بخيل وطن کړو

زهٔ ئې ستا په مينه اوليدم اور سوے
چې بخشش ئې يو زړګے راته خوږمن کړو

دَ دنیا په محفل هر سړے خوشحال دے
خو خوښی ئې په قسمت زما قدغن کړو

دَ مال سر په دوُ مې بیا هم اشنا نهٔ شو
دَ تهمت داغ ئې راپورې په لمن کړو

دَ رخسار نه دې گل مخ په پانو پټ کړو
دَ مخ مخکښې شرمنده دې سپین سمن کړو

سائیل سر په نعرو زور شو ستا دَ لاسه
محرومی ئې په نصیب زما دیدن کړو

* * *



چې په زړهٔ دا ستا دَ مینې مې څُف دم شو
هغه ورځ راسې مې زړهٔ په غم کړم شو

ستا دَ حُسن دَ طلب ئې زړهٔ ارمان وو
اوس انغختې په تور تیپ کښې دَ تورتم شو

دَ خزان سپېرهٔ بادونه ئې بانه شول
سُور او سپین ګل دې دَ مخ بنا نُست نه رم شو

زړهٔ دَ عقل دلاسو مې ډېر ایسار کړو
بندیوان ئې دَ زلفانو په هر خم شو

دَ حیا ننګ محلونه را اړتاوُ شول
دَ غیرت ګوهر کوتې مې ستا په چم شو

چې زما ځواني ئې خاورو کښې لاهو کړه
هله پسته مې د سترګو نه نم تم شو

د ښائست په ذرزخېز دې ټول عالم شو
په هر ځائے کښې دې بيان د سترګو فم شو

د رقيب خوا کښې مې يار په خندا اوليد
هغه وخت روان بهير د سترګو نم شو

د باز سترګو دې زما زړګے خوراک شو
د ښو غشو ګوزار دې رسا سم شو

د خندا خوشحاله ژوند نه خبر نهٔ شو
تخيّل مې ډک په فکر ستا د غم شو

سائل ولې به بخيل قسمت نهٔ ژاړي
چې د زړهٔ ټوټه اشنا زما په ذم شو

* * *



که هر څو مې ځان دَ مینې نه په څنګ کړو
ستا دَ غم په تصوّر مې ځان ملنګ کړو

دَ پښتو او نام وننګ پړې مې اوسوې
ما چې ځان په ډیوه څې باندې پتنګ کړو

دَ مژګانو تېرهٔ غشې ئې په کورت کهٔ
زما زړهٔ سُورے سُورے غشو خدنګ کړو

که هر څو مې سپکوی ورځم کوڅې له
دَ محبوب په رټ جواب کله حیا ننګ کړو

دَ ناصح په نصیحت مې عمل نهٔ وو
چې دَ زړهٔ مینې مې جوش واههٔ غورځنګ کړو

په خراج مې ملغلرې اوښکې ورکړې
چې دَ حُسن پادشاه حکم دَ قلنګ کړو

زما زړهٔ څوره بې هوش پرېوت اثر نه
ستا خبرو چې پېدا ښکلے اهنګ کړو

زهٔ په کوم الفاظو ستا شکر ادا کړم
چې سائل دې دَ خپل مخ په شعلو رنګ کړو



* * *

چې مې پورې په زړه ستا د مینې اور کړو
هغه ورځ راسې دنیا نه مې زړه تور کړو

د هر چا خندا اوښکو بې راپسې شوې
ستا په مینه کښې قبول مې هر پېغور کړو

چې مې مړاوې سترګې اولیدې رنځور شوم
دغه مړاوے رنګ مې ستا د سترګو پور کړو

ما ئې زلفو ته لا لاس اوړلے نه وو
چې جهان ئې ټول خبر په چغو شور کړو

سپین قمیص مې د ښتو بیا صفا نه شو
چې د مینې داغ پرې پرېوتلو تور کړو

زما زړه لکه مارغه په دام کښې ګېر شو
چې د زلفو جال ئې لاندې په ځنور کړو

یوه ورځ به دې غېږ خوره په ټول مومند شي
چې سایل هم دې دنیا نه سر په ګور کړو



زړهٔ ئې مانه یوړو په نخرو سره
پاتې شومه زهٔ چغو سورو سره

کړه جفا، جفا ماته قبوله ستا
شم چې اموخته دَ سرو لمبو سره

اوس مې اشنائي شوله ژړا څخه
مینه مې ستا نهٔ کړله زارو سره

بنکل ئې چې یو ځلې دَ یار شونړې کړې
چرته. هغه خوند دے دَ ترو سره

ځان ځانله پټ ژاړمه له خلقو زهٔ
څهٔ اوکړمه خپلو لېمو سرو سره

څه طبیبه دا د رنځ علاج نه دے
نه رغیږم ستا تر څو دارو سره

پټه دې چې پرده کښې کړو وصاله ځان
خوښ شوم د هجران تورو تیرو سره

ولې ترې ساتله خلاصومه ځان
شوم ایله عادت د زولنو سره

نېټه: ۱۹/۱۱/۱۹۶۱ء
د رائټرز کلب په اجلاس کښې

* * *



کمځو کښې مې زړهٔ ول شو چرته ځمه
راکړې خو هیله غل شو چرته ځمه

ناسازو دَ فلک نه ګیله نکړم
اشنا مې کهٔ بدل شو چرته ځمه

خبرې په غمزو چې شوې روانې
ادا مې ستا اجل شو چرته ځمه

دَ زلفو تصوّر دې هسې یوړم
زړهٔ ستړے په منزل شو چرته ځمه

وړم لرې لارې ورک شوے دې دنیا نه
مطلب مې کهٔ یو حل شو چرته ځمه

وفا مې په بدل کښې د جفا ده
سپېرۀ مې چې ازل شو څرته ځمه

د حُسن څېر ته کښېناستم په طمع
په هرپل مې قدم شل شو څرته ځمه

ځېر ځېر به خود سائېله ورته ګورم
رنګين مې چې غزل شو څرته ځمه

ښيتها ۱۹۶۵ء

* * *



ژوند هغه ژوندون دے چې تېرېږي د اشنا سره
مست وي ارمانونه د زلمو جنديو فضا سره

څه د پتنګ مینه په یو دم کښې چې ځان وسېزي
مینه د بلبل ده چې ئې عمر وي ژړا سره

وخت دے چې جامونه ډک په ډک راله ساقي راکړي
لرې دې زاهد شيخ دې ورک کړي د تقوىٰ سره

ولې مې زورې ته په هېڅ شانله نه جاروزمه
څه نه په وېرېږم چې بلد یم د قضا سره

خام عقل پخېږي نور په مینه کښې څه نشته دے
راشه اے د مینې لېونتوبه! انتها سره

ګرزمه سرې سترګې دَ هر څهٔ نه يې خبره يم
خيال مې دَ يار مل شو غرض نهٔ لرم دنيا سره

ماوې نور به نهٔ څښم پيالې ماتې مې په کاڼې کړې
ماته مې توبه کړه ساقي راغې دَ مينا سره

چا وې چې ساټل دَ يار په مينه کښې خپل سر ژغورې
ځان ئې چې ادا کړو دَ اشنا يوې ادا سره

يادګيرنه:- په ۱۵/۴/۱۹۶۲ء دَ رائټرز کلب اجلاس ته
تنقيد دَ پاره پېش شو

* * *



زما په خیله خوږه ژړا خوښه ده
ستا په سرو شونډو مې خندا خوښه ده

چې مې کنځې نو نور مې هم او کنځه
زما خو ستا تشه وینا خوښه ده

خیالي جنت دې مبارک ناصحه
پریږده زما د خیال دنیا خوښه ده

ما چې رضا ستا په رضا سپارله
بس نو پوهېدم چې مې قضا خوښه ده

په تورو شپو کښې مې د تورو زلفو
د اننګو سپینه رڼا خوښه ده

چې اموخته شو مه په خوند د جفا
اوس د وفا نه مې جفا خوښه ده

زړه مې سورے شو د غمزو په غشو
دا مې د یار ناز و ادا خوښه ده

ننګ و غیرت مې په تا بائیلو اشنا
بیا دې لا هم د رقیب خوا خوښه ده

د نرګس ګل چې تازه کیږي په نم
ځکه د سترګو مې ژړا خوښه ده

ولې مې ده ترې یره وي بېلتونه
د عشق پخیله چې فنا خوښه ده

چې په لیدو مې تکه سره غوندې شي
دغه لمبه مې د حیا خوښه ده

سائل چې اولي د بڼو په غشو
تهم ئې نښه د اشنا خوښه ده

په ۱۹۶۱/۱۲/۳۱ء د رائټرز کلب اجلاس ته تنقید د پاره
پیش شو

* * *

د غمونو مې په زړه رانسکې ږلۍ شوه
د رقیب خوا کښې شها چې خندنۍ شوه

که مې نوم چرې د مینې وو اخیستې
هغه مینه مې نن غاړې ته رسۍ شوه

خدائے خبر چې په دهر چا حال هم دا وی
که زما بعقله دا ښنه امزرۍ شوه

هله پسته که د وصل جام زړه اوڅښم
چې په وینو کښې مې رنګه ککرۍ شوه

چې په نه څه مرور خیرې نه که
توبه ځکه مې له دې هسې یارۍ شوه

سینه ډکه شوه هغه انسانیت نه
چې په غشو د بنو د یار سورۍ شوه

په ژړا هسې سآبله ځان رنځې ته
د یار وصل د کنجوس د کور نمرۍ شوه

۱۴/۱۰/۱۹۶۲ء د اشتې ز کلمه اجلاس



ژوند څهٔ دے بس قیصه زما او ستا ده
لکه ورانه ماشو رړه دَ خوار جولا ده

ژوند څهٔ دے اویهٔ ښکاری خو سراب دے
خوب و خیال دے صرف تشه تمنا ده

په خوږو دَ ژوند څوک موړ نشو دنیا کښې
دا وړنا دَ کاڼي کوښه ده ربښتیا ده

ژوند څهٔ دے بس لوُټل دی دَ ږي بسو
ژوند څهٔ دے دَ غریب دَ سر سودا ده

په دې ژوند کښې ظالم سر په مزو کوره
دَ مظلوم په برخه لیک صرف ژړا ده

ژوند دَ تلخو حقائقو کاسه ده
دا دَ زهرو پیاله ګوټ کېږي دَ هر چا ده

ژوند یو لوبه ده په سټېج دَ کردارونو
دَ هر چا ځانله کردار ځانله ادا ده

ساټل وائي چې عشق ته وي ژوندون ګران دې
دَ ساټل دَ ژوند تکیه اشنا په تا ده



* * *

دَ ذرهٔ حال وښلے نهٔ شمه وَ چا ته
که ئې دائِم راکوي پیغور وَ ما ته

یو څو سره تماکو شوم دَ یار غم ته
چلمې غم مې کورړئ. صبا بیګا ته

چې رخسار ئې هوا ښکل که داغ پرې جوړ که
تاؤ راتاؤ شم دَ غصې نه زهٔ هوا ته

نور دې نهٔ اورم ناصحه بس دے چپ شه
څرنګ داځوم دَ یار مینه زهٔ شاته

چې توبه دَ عُمر زهٔ کړمه پرې ما ته
هغه جام دَ میُو راکړه ساقي ما ته

وېل ئې، نهٔ څمه رقیب له، ته مې یار ئې
رقیب راغے لاړه بیا دَ رقیب خوا ته

سائِل سوال کوي کچکول په لاس نیولے
ستغې سپورې اشنا مهٔ که بې نوا ته

۱۹۶۳ء



څهٔ ښکلے اشنا ئې تهٔ
ښکلو کښې زیبا ئې تهٔ

زهٔ مئین په تا یمه
ښهٔ خبر په دا ئې تهٔ

یا مې ښهٔ اشنا وې تهٔ
نن رانه جدا ئې تهٔ

تا ته زهٔ مخلص یمه
ولې دَ بل چا ئې تهٔ

تهٔ چې نن په ډډه شوې
وایم خفا لا ئې تهٔ

نورو غخنه مهٔ خاندهٔ
جار دایسم زما ئې تهٔ

تهٔ چې زما یار نهٔ ئې
بیا وایه دَ چا ئې تهٔ

نن ساحل ژړا کوی
خههٔ له په خندا ئې تهٔ

نیټه : ۱۹۶۳ ع

* * *

* * *

مینې دَ اشنا مې قنا جوړه که
ماته ئې وفا نه جفا جوړه که

ته چې لاس په سر شولې اشنا د ما
ځان له مې دَ خیال یو دنیا جوړه که

څه رانه په ترخو کورو په سترګو کښې
مړګی له دې یانه جوړ زما جوړه که

هلته په خندا شوې ته رقیب سره
دلته ما په چغو ژړا جوړه که

وائې په خوله یو څه په زړه بل څه ته
څه دې یارانه دَ ریا جوړه که

بې له خپله یاره طبیب چرته دے
څوک به دَ عشق رنځ له دوا جوړه که

یو رنګ شوه جفا وفا سانِلہ اوس
ما رضا دَ یار په رضا جوړه که

۱۴/۱/۱۹۶۲ء راڈیو نژګلو اجلاس



## دَ اکبر زمینداروی په مزکه

ستا مینې دېوانه کړم دېوانه یم لا تر اوسه
سرو شونډو مستانه کړم مستانه یم لا تر اوسه

سینه ټوله غلبېل مې کړله ستا دَ بڼو غشو
یو وار ئې نښانه کړم نښانه یم لا تر اوسه

دَ ډکو جګرو ټوټې مسخرې راسې شولې
تا ولې بېګانه کړم بېګانه یم لا تر اوسه

ستا مینې دَ جهان دَ خوشحالو کړمه وېزاره
غمونو استانه کړم استانه یم لا تر اوسه

څنګه به يې زه نه څښیمه زاهده! دا ته وې څه
دَ يار غم رِندانه کړم رِندانه يم لا تر اوسه

ځان څومره چې رانغاړمه، لا نور هم مئين کېږم
يو ځل دې پروانه کړم پروانه يم لا تر اوسه

په زړه کښې لره مينه بې يارمه اوسه ساپله
چې مينې فرزانه کړم فرزانه يم لا تر اوسه

۲۸/۱۰/۱۹۶۲ع
رانسټن زګلړ اجلاس

* * *



توبه! توبه! ستا دَ جفا مې توبه
زما ژړا ستا دَ خندا مې توبه

چې یکښې ستا وصال په خوب وینمه
دَ داسې شپې دَ روڼ صبا مې توبه

دَ مال و سره دې ورتېر کړم په عشق
ګوګله! ستا دَ دې سودا مې توبه

ستا دَ رخسارو چې ښارنه کوي
دَ دغه تورې اژدها مې توبه

فنا خو شته! یم دَ فنا قائله
چې ده زما، دَ دې فنا مې توبه

زړګیه! که یو ځلې لږ صبر شولې
بیا له یارۍ په نصوحا مې توبه

هسې بنودنه د شرابو کوې
ساقي د دې تشې مینا مې توبه

چې ئې زړګی کړو راله ترمې ترمې
ستا د غمزو د ناز ادا مې توبه

یمه ژوندے د چا په عشق ساتله
مینه چې نه وی بیا د دنیا مې توبه

نیټه ۱ ۱۹۶۲ء

***



په مخ ئې يو حيا وه د پښتو چې تله راتله
ارزو ئې د ديدن وه د زلمو چې تله راتله

زهد و تقوىٰ لاړه زاهد و نخت رنګينو کښې
مستي جذبات درانه شول په تسپو چې تله راتله

زړګے مې د مست خيال په جوړو سرشه زنګېده
ټالونه په اوربوزو وهۀ کمڅو چې تله راتله

د حسن لېونى جوړ بيا بېرته لېونى شول
خلل د عشق تازه شو په مزغو چې تله راتله

نن ستا په رټ جواب مې هغه ساه له بدن ځي
کوڅو کښې ستا د چم په تلو راتلو چې تله راتله

قیصې وې ستا دَ زلفو په جهان کښې خورېدلې
شرنګا دَ زولنو دَ لېونو چې تله راتله

زړګے یو بې اسرې ئې لګه ګرد په ښېسو وړلو
مستۍ کښې په خندا په ناز نخرو چې تله راتله

معلومه رقیبان شول ستا محفل ته په راتلو
سُرخی په موشادو دَ څو څوسو چې تله راتله

ښه وه هومره ښه وه چې نخیل حُسن یوئې نه وه
په نښت دَ اوربدو اوږدو قیصو چې تله راتله

پرې ښبوم انتظار ته نن په وخت راغله سائیله
رقیب نه وو په منځ کښې دَ کوڅو چې تله راتله

ښته ۲٦/۴/۱۹٦۴ء
رائیټرز کلب اجلاس



دَ زلفو سورې لاندې ژوندون دے تېروُمه
هر څهٔ چې اشنا کاندې ژوندون دے تېروُمه

دَ حُسن کرشمو مې، په زړهٔ يو ناتار که کړو
په حُسن کښې ئې باندې ژوندون دے تېروُمه

يو تندر اسماني وي، په زړهٔ مې شړق راپرېوځي
رقيب سره چې خاندې ژوندون دے تېروُمه

ستا دَ حُسن په صفت، مور نهٔ شومه هيچرې
حسينو کښې ځلاندې ژوندون دے تېروُمه

سائل څهٔ شاعري څهٔ، بس محض شوخبرې
دَ شوي زړګي ساندې ژوندون دے تېروُمه



مینه! ستا په واوېلا ئې څه دي
دَ زړونو ښکار کړم رهزنه یمه زهٔ

ما وې قربان مې سر و مال شه له تا
وې! شُکر کور نه ښهٔ دړنه یمه زهٔ

لا مې حال دَ زړهٔ وېلے نهٔ وو
وې! دا دے لاړم پستنه یمه زهٔ

ما وې په تا باندې مئین یمه زهٔ
وې! په غوبزونو چې کنه یمه زهٔ

ما وې سائل یمه زهٔ سوال کومه
وې! دَ سائل خو دښمنه یمه زهٔ

۱۹۶۲ء
پېښه،



ستا کوڅې نه بې نوا راغلې یمه
ستا د در نه په ژړا راغلې یمه

د رنګین وختونو یاد دې په ژړا کړم
د چمن نه په صحرا راغلې یمه

ستا په مینه هیڅ څه موړ نشوم تر ننه
د ازل نه چې شیدا راغلې یمه

زه د مینې ټول بندونو نه راتېر شوم
تاله ځان نه بې پروا راغلې یمه

هیله اوس په لذت پوې شومه د مینې
کنګال لاس چې له دنیا راغلې یمه

ستا دَ مینې په دریاب کښې چې لاهُو شوم
ډوب دَ فکر په سیند لا راغلے یمه

ستا په نرم مزاج پوهٔ چې لږ پرون شوم
نن خوشحال دلته په دا راغلے یمه

دَ زړهٔ کور مې یس لهم تا تالا ترغه کړو
اوس په حقه په ډشتیا راغلے یمه

مهٔ دَتہ مهٔ مې غنده یس بښکلیه یاره
زهٔ ساحِل په دُرشل ستا راغلے یمه

* * *



نن مې بيا دے راياد شوے چې يار څنګه
په خزان کښې دې وږمې دَ بهار څنګه

دَ جنون وحشت ګرېوان زما پاره کړو
واپه دادې وو دَ مينې ګوزار څنګه

دَ ګلونو په سېل رانغلو ګلزار ته
دا راغلے په چمن وو بهار څنګه

دَ پښتو په نوم پښتون پښتو خوراک کړه
دَ سياست په دوکان ناست دے عذار څنګه

ستا دَ سترګو په غمزو مې ځان شهيد کړو
په خندا ختو منصور چې په دار څنګه

یار پوښتي چې زړه په چا یې مئین شوی
ورته وکړمه د مینې اظهار څنګه

ستا د کور کوڅې هر کس مې مخالف شو
اوس کوم به دې دیدن او دیدار څنګه

ته زما په ترژبو ولې خندېږې
نه پوهېږم ته زما یې دلدار څنګه

د سائل په ځان پېرزو بده ورځ نه وه
تا ترې یو رو بیش بها زړه په جار څنګه

* * *



مړاوې سترګې خماري نشې نشې نه
دَ زړونو په ښکار اووته کوڅې نه

په ترپکو مې زړهٔ سر شو په ارمان کښې
تا چې مخ کړو رابهر سپينې برقعې نه

په سر کاڼي مې دَ قيس کښېږده لاس خپل
چې په خوا کښې مې تښتېږې ادېرې نه

ستا دَ حُسن "تاج محل" مې په نظر شو
اوزګار نهٔ يمه دَ ښکلې تماشې نه

کمين ذات کله پښتون دے پښتونخوا کښې
هر سړے به ځان پښتون بولي دعوې نه

زړه مې ډک د خوشحالۍ نه شو بې شانه
ما چې واورېد ستا اواز پټې پردې نه

په شنو پټو کښې سور ګل غوندې ښکاره شو
چې اشنا کړو مخ بهر شنې لوپټې نه

سائل ستا په مینه مست دے ستا غلام دے
د سائل په لورې مه ګوره لرې نه

*

* * *

*

* * *

دَ اشنا دَ تورو سترګو اثر ګوره
چې ګاوندۀ کښې بې حسابه اوتر ګوره

دَ محبوب موندل ممکن نهٔ دي مشکل دي
په الوت ورسي بادِ سحر ګوره

دَ کم ذات سره چې راشي دولت لاس کښې
تریو تندي باندې سلام دَ کبر ګوره

دا دَ سرو شونډو اثر نهٔ دے نور څهٔ دے
دَ لاله ګل په سرو وینو تهٔ ګوره

تهٔ وے راشه او کهٔ درغلم کوڅې له
اورېدلے مې دَ خلقو په شر ګوره

محبت که صداقت باندې بناء وي
همېشه دې سترګې نم باندې تر ګوره

کهٔ هر څو تهٔ ښکلې حُسن ئې مغروره
دَ سائیل په لور دَ رحم نظر ګوره



تاسو خو وایئ دیوانه یمه زهٔ
دَ چا په مینه مستانه یمه زهٔ

اے په صحرا دَ خیال مې یلې شمعې
بلیږه تهٔ چې پروانه یمه زهٔ

پرېږده فنا دې شم په مینه کښې ستا
چې پس له مرګه افسانه یمه زهٔ

یو غم دَ یار بل دَ اغیار غمونه
جوړ دَ غمونو استانه یمه زهٔ

چې خونړی ستر ګې مو رچې دې کړلې
غنی را اوله نښانه یمه زهٔ

لري دَ مخ نه که پریشانه زلفې
ګنې مرګي ته یو بانه یمه زۀ

کوه جفا، جفا چې کار دے دَ تا
خو واړې سوې اشیانه یمه زۀ

داسې تا مخ له مانه واړه ولو
لکه پردے او بېګانه یمه زۀ

سائل دې "فَلَا تَنْهَرْ" لهره وی
داسې کافر ته نشانه یمه زۀ

نېټه: ۱۰/۸/ ۱۹۶۱ء
دائیتر زلمو اجلاس

* * *



ګېږ مې په زلفو اندامونه پراته
د چا د مینې ډېر خیالونه پراته

زاهده څه پروته دې لار لنګروه
جام کښې زما دي قسمتونه پراته

وصاله ستا د خوشحالو د لاسه
راته پوهېږم ډېر غمونه پراته

سترګه مې نه سوزي رقیبه له تا
جیب کښې زما دي ستا چلونه پراته

ځوانه ځوانۍ کښې نصیحت ناصحه
اودرېږه ډېر دي امیدونه پراته

ازار مې مهٔ اخله لمبه به شي ته
زړهٔ کښې زما سوی اهونه پراته

مطربه ستا نغمې په څهٔ کړمه زهٔ
زړهٔ کښې زما خوارهٔ دردونه پراته

دَ پېغلتوب په خزانه کښې ګلې
دا سرهٔ ننګې دی کهٔ لعلونه پراته

کهٔ مې قسمت پکښې دَ خېلونهٔ وی
ماته شه دا هسې څه جامونه پراته

ستا دَ بڼو غشو یادګار ئې ګڼم
په زړهٔ زما دغه زخمونه پراته

سائله ژوند به په ارام شی هله
اوږده چې لنډ شی منزلونه پراته

نېټه: ۲۲/۱۰/۱۹۶۱ء
راشهٔ زړهٔ ګلې اجلاس



ستا دَ درنه چې را اووتم پرېشان زړهٔ
هغه وخت نه په دنيا يمه ستومان زړهٔ

ستا دَ حُسن جلوې صاف پکښې ليدے شي
دَ چمن هر ګل ته ګورمه حېران زړهٔ

دَ لمسون نه بل څهٔ کار دَ رقيب نشته
په سينه کښې ئې مردار دے دَ شېطان زړهٔ

ستا په مينه کښې رنګ رنګ خبرې اورم
خپل پردی نه هر لحظه يمه نالان زړهٔ

دَ در مخکښې ئې ګرېوان څيرې ولاړ يم
خو هېڅ نهٔ سوزي په حال مې دَ جانان زړهٔ

دَ چا خوښ دی او که نه دی زما خوښ دی
خو اشعار مې په تحرير دی دَ سوزان زړه

دَ سپرلي ګلونه ټول په رژېدو شول
په ارزو طلب يې مات دَ ګلستان زړه

په شپېو شپېو باران دَ سترګو ګوره
په ژړا مې ډک تش شوے دَ ارمان زړه

دَ ساحل دَ نورو خلقو پروا نشته
خو يو خوښ دې وی خوشحال ترې دَ جانان زړه

* * *



دَ هر چا دَ خپلې مينې يو معيار دے
په معيار چې برابر وي هغه يار دے

دَ چا سپين مخ په خوښېږي دَ چا سکاڼے
دَ چا تور مخونه کوره دَ زړهٔ زار دے

دَ چا تورې سترګې وينم پُر کششې
دَ چا سترګو کښې ښکاره ښکلے خمار دے

لمر اندام دې دَ جوسې هسې روغ شوے
چې نظر کړم دَ قدرت ښکلے شاهکار دے

ستا دَ مينې په ارزو کښې لوے لذت دے
چې قدم دې په لور اخلمه پُرخار دے

دَ بدن په نزاکت کښې دې څه شک دے
دَ زلفينو هر يو تار په تندي بار دے

دَ سرکار په کرسئ زيات کمينه راغلل
لوڼې تالان ئې دے جوړ کړے لوئے مکار دے

زهٔ منم چې سائِل سپک دے ستا نظر کښې
دَ سائِل دَ زړهٔ ټوټه ئې بې اختيار دے



* * *

ما چې دغه ستا ښکلے جمال لیدلے دے
زړهٔ مې هغه ورځ نه خپل ملال لیدلے دے

ورک شه اے هجرانه! مخ مهٔ ښایه راته خپل
یار مې شو پخلا ما نن وصال لیدلے دے

تهٔ چې ناز نخرې کړې په هر وخت ډېره خندا!
کله تا زما د زړګي حال لیدلے دے

نیغ لکه الف وي د عشق نه یې خبره
عشق کښې هر عاشق مې لکه دال لیدلے دے

تهٔ که یارې نکړې یارې مهٔ کړه اوس څهٔ
ما یارې له ستا طریق د خیال لیدلے دے

ورو ستو چې شانه زلفې خورې کړې په اوږدو
زړهٔ مې د اوږدو زلفو په ټال لیدلے دے

ستا ټوله جفا سائل ئې اخلي په وفا
زړهٔ ئې په جفا چې ستا خوشحال لیدلے دے

نېټه ۱۹۶۰ء

* * *

یار مې د رقیب خوا کښې "ارمان" لیدلے دے
د غم په سیند لاهو مې څکه ځان لیدلے دے

ما ورته د ښو پندونو نه تول تمام کړه
پوې نه دے ناپوهه مې نادان لیدلے دے

زه وایم زما دے بس زما د زړګي سر دے
دے مې د هرچا خوا کښې خندان لیدلے دے

د مینې د جنون نه لیونتوب جوړو جوړیږي
بېګاه مې ځان په خوب کښې په بیابان لیدلے دے

ښکلے مسیحا زما د ژوند قاتل د قتل شو
دنیا داسې لا کله څوک درمان لیدلے دے

ناشونکې به هم شونکې شي انسان که غواړي څه
د حسن کار تلاش کښې مې کاروان لیدلے دے

ساېل دے بل څوک نه دے چې د مراد لمنې نیسي
نامراده مې په مراد کښې د جانان لیدلے دے

* * *

ولې وايې چې زړګې مې پرخون نهٔ دے
دَ بنهو غشو کوزار دے فسون نهٔ دے

ستا دَ لاسه ازار شوے یم بد حاله
حال مې څهٔ پوښتې بس اوس دَ ګتون نهٔ دے

دَ پردو نه به کیله څوک څهٔ دَ نسو کړې
خپل اشنا مې په رټل دے سمون نهٔ دے

دَ مطلب نه خالي يار په جهان نشته
په قسمت دے په طلب او لټون نهٔ دے

دَ يو ذات نامه پښتون وه دَ قديم نه
هر سړے چې پښتو وائي پښتون نهٔ دے

دَ پښتو دَ وقار پګه را اړتاؤ شوه
ننګ غيرت ئې لا په ځائے دے زبون نهٔ دے

دَ عشق تاؤ دے چې ساڼل په خولو ډوب دے
دا موسم چرته دَ اړ او دَ جون نهٔ دے

چې ئې حُسن ته حیران یم هغه څوک دے
چې په مینه ئې لړزان یم هغه څوک دے

زهٔ دَ سره پرې ورتېر شوم سرې بائېلود
لا پوښتي چې زهٔ پرې ګران یم هغه څوک دے

دَ نري درد په علاج دَ زړهٔ پوې نشوم
چې په غم ئې سرګردان یم هغه څوک دے

رقیب ټول کلے خبر مې په دیدن کړو
په راتګ ئې چې پښېمان یم هغه څوک دے

تخیّل مې منور شو په یو حُسن
چې مئین په یو خوبان یم هغه څوک دے

چې زما د زړهٔ محل ئې را اړتاوُ کړو
چې لیدو ته ئې په ارمان یم هغه څوک دے

څهٔ پعذاب یم په غمونو دَ یو بنکلی
چې په ژوند باندې ستومان یم هغه څوک دے

دَ رقیب خوا ته چې ځي ورځه رضا ستا
چې له ظلمه ئې نالان یم هغه څوک دے

اداره اوتر چې زهٔ ورپسې گرزم
چې په زلفو ئې پریشان یم هغه څوک دے

چې مدام سر په کوړې یمه مرگی ته
چې جلاد ته په کړان یم هغه څوک دے

سائل وائی ستا له خبره مې توبه ده
چې په شور ئې دَ سکان یم هغه څوک دے

* * *

نن په زړهٔ مې هغه يار راغلے دے
چې زما زړهٔ ئې په جار داغلے دے

دَ دنيا په ښائست روغ دې تن بدن دے
په حسينو کښې تنکار ښاغلے دے

دَ خفګان جواز ئې هيڅ نو موجود نهٔ وو
چې مې حکم دَ دلدار منلے دے

څهٔ وې ناسته په مجلس دَ ناکسانو
ځان مې خوښ چې درکنار کتلے دے

زهٔ ئې راغونډ کړم، مينه ئې بيا پرهر کړې
هر پرهر دَ عقل تار ګنډلے دے

حکيمان مې دَ علاج نه مايوس لاړل
په بڼو ئې زړهٔ افګار ليدلے دے

دَ ساېل په نظر څکه اثر پرېوت
چې ئې يار په زارقطار ژړلے دے



دَ خزان دوورونه تېر شول بهار راغې
دَ چمن دَ ګلو سېل له مې يار راغې

دَ جمال سرور ئې هسې مجذوب حال کړم
مستانه زړهٔ مې ختو ته دَ دار راغې

دَ قاصد دَ منصب فرض ئې ښهٔ ادا کړل
دَ بېکارونه بېکار هم پکار راغې

دلته سر شيندل دَ حُسن په طلب دي
مئين پوئې نهٔ شو په هسې بازار راغې

هيڅ امکان دَ وصل چرته ليدے نهٔ شو
ټوله شپه ځکه په سترګو کښې خار راغې

دَ دوستۍ په طریق اوس هیله جوړېږئ شو
نن دَ ټولې دنیا مخکښې په جار راغے

چې ئې پرېوړ پسته زړهٔ دَ لادو بادو
هیله اوس چرته قانون او په لار راغے

نن اول ځل په کتو زما مُسکے شو
آواره زړهٔ مې خپل کور او په دار راغے

دَ سائبل ئې دَ جنګونو طاقت نشته
اشنا بیا قهر نیولے تیار راغے

* * *

***

هیڅ انسان د خپل انجام نه خبر نه دے
د بشه بد سحر ماښام نه خبر نه دے

د فنا ځائے ته ورزغلي په یو منډه
د صیاد ایښودې دام نه خبر نه دے

د هلکو په جګړو ځواني ښکار شي
هیڅ هلک د هوش د بام نه خبر نه دے

هر پښتون ځان افلاطون په جهان بولي
په لغزش د عقل خام نه خبر نه دے

د پښتون ختمه کښې جهل شامل شوے
نتائج د یو دشنام نه خبر نه دے

هر انسان په خپل اختیار کښې دے بې وسه
د قدرت د اهتمام نه خبر نه دے

د سائل په برخه صرف نصیحت دے
په عمل بې د بل پام نه خبر نه دے



دَ ښائست په لحاظ هرڅانه زیبا دے
راشه اوګوره زما ښکلے اشنا دے

سترګې څه دي دَ خُمار دي ډک جامونه
نرګسې سترګې ئې سرې لکه لاله دے

په کمال دَ لاس وېښو ګوتې دي روغې
دَ قدرت دَ فن شاهکار مثال شها دے

سره وروځه دي په قط اوږده پرته ده
لکه مار چې اوږد پروت دَ نرۍ ملا دے

دَ بدن په وږمو روح زما خوشحال شي
په وږمو ئې هسې خوښې مشام زما دے

دنګه غاړه کښې صفا او به ښکاریږی
ته به وایې د شیشې لوښې یس دا دے

سپینې لیچې څه دی، تورې خنجرونه
هر ګوزار ئې په زړګی صفا رسا دے

باڼه نه دی تیره غشی د ښکاری دی
عاشقان اولی د ښکار په تمنا دے

د ښائست مظهر ئې پوزه هم غوږونه
په وینا نرم مزاج ګفتار صفا دے

نرۍ ملا ئې د وینسته په دود اوږده ده
د مئین زړګی هر قینچ مکین شفا دے

زه د کوم ادا تعریف او صفت اوکړم
غنم رنګے دوست مې ټول ادا ادا دے

د سایئل په زړه او ربل شونډو رخسار کړو
لیونے اوتر ګرځی په صحرا دے



زړګیه! تۀ وایې صنم دے
ګورم وینم چې لوۓ غم دے

زۀ ئې پوې په وفانۀ شوم
اماني ستم ستم دے

چا له مینه به کیمیا وی
خوما خوار لره ماتم دے

په کنځلو کۀ ستنبږم
ستا په کوځې مې بیا قدم دے

ستا دَ زلفو په خیال ګرځم
ړوند مې ځکه په تورتم دے

ستا دَ ځنې سرو اننګو نه
ما زار کړے تړې اِرم دے

لېونے کړمه بېلتون ستا
عالم واړه مې په ذم دے

داسې مار یمه چیچلے
بې دوا دے غم بې دم دے

بې وفا دې یاران واړه
خفا خفا پرې رقیب ګرم دے

په تهتر مې دے خوړلے
دَ نظر ګوزار دې سم دے

کهٔ ترڅې دې نکړم ځانته
ساپټل ویښې په عدم دے

نېټه: ۱۹۶۲ء

* * *

سرې لکه شراب مې د یار شونډې دی
بیا بیا ئې ښکلوم د خمار شونډې دی

زړهٔ کړی داپوره چې له خپل ځایه دا
څهٔ د ولولو انتشار شونډې دی

لا مې تخیّل ته رنګینی ښخنبي
خیال کښې د آشنا مې رخسار شونډې دی

څوک که راته وائي چې بس بس دے نور
نهٔ اوړم هر څوکهٔ د دار شونډې دی

داړې وی نکولې پرې رقیب خپلې
شونډو له زماد انکار شونډې دی

غوښ که تېرو وروځو کړو زړهٔ راته
زړهٔ ته اوس ارام او قرار شونډې دی

خود به ویلی کېږی اوس سائیله ستا
موم زړهٔ ته د یار چې انکار شونډې دی

دا ښتړ ز کمله اجلاس ۱۵/۴/۱۹۶۲ء



دَ گل په خوا کښې خار چې نهٔ وی ښهٔ وی
رقیب څنګ کښې دَ نګار چې نهٔ وی ښهٔ وی

چې دَ یو په غیږ کښې پروت یل ته خندا که
له دې هسې یاره یار چې نهٔ وی ښهٔ وی

ستغې سپورې به دې و سهمه خبر دے
خو یارې نه دې انکار چې نهٔ وی ښهٔ وی

چُف دَ مینې به کړی سمې منګور زلفې
بې اودې څُنګلې مار چې نهٔ وی ښهٔ وی

چې امید ترې د وفا نهٔ شي هېچرې
داسې مینه په زړهٔ یار چې نهٔ وي ښهٔ وي

د راتلو وعده به اوکړي رابه نهٔ شي
د راتګ دې انتظار چې نهٔ وي ښهٔ وي

سائل[1] ښهٔ منکرے بیا موته هشتنغر کښې
هرو ژوند په بل دیار چې نهٔ وي ښهٔ وي

---

[1] ۲۰/۳/۱۹۷۳ء پروفیسر رحمت الله درد ته اشاره ده. چې دغه دوران ګورنمنټ کالج چارسده کښې موږ دواړه لیکچراران وو۔ او زهٔ ګورنمنټ کالج ټانک ته تبدیل کړم



نیت دې د راتلو که په دې لورې شي
زېړې مړاوې پاڼې به سمسورې شي

سترګو ته دې سترګې مې کتے نه شي
سترګو ته ستا سترګې په ما تورې شي

ستا د مینې ځوږ د زړه دوا بولم
مینې که بې خونده د چا تورې شي

خلقو خوې د حُسن تماشې وکړې
زما بده قسمته چې ور پورې شي

ما ئې نازک لاس له لاس وړلے نه ئې
یار په چغو سر شي "وئ! یه مورې" شي

تا نه سائل خوار د حُسن سوال کوي
ته ځاندې ټټوبې دې ورپورې شي

دسمبر ۱۹۶۷ء



چې پورته چت ته دَ کوټې ښکلې اشنا وخېژي
دَ عاشق زړهٔ په يو نرۍ شانې مُسکا وخېژي

داسې راغاړه شه چې دوه زړونه شي يو سينه کښې
داسې راجوخت شه چې له دوؤ لبو يو ساه وخېژي

ما وړپسې په منډو ترڅو پېزار زاړهٔ کړل
نهٔ پوهېږم چې په آخر کښې به دَ چا وخېژي

داسې نصيب به کوم مئين وي له ازل راوړې
چې اشنا ئې په مرضۍ او په رضا وخېژي

داسې په تورو تيږو راشه چې زړ بېرته نهٔ ځي
ستا ديدن وکړمه هسې پوئې نشم صبا وخېژي

ساپُله ته ئې دَ غم دَ لاسه اوږدې شپې روڼوې
خو هغه بيا هم دَ رقيب نا ترس ترخوا وخېژي

دسمبر ۱۹۶۷ء



په زړګو نو کښې یو کس نشه په شمار خېږي
داسې کم دي چې عمل کړي د کار خېږي

چې د مینې داستانونه ئې اورېدے شول
په نفرت کړکه او س خلق وېزار خېږي

د ظالم لاس چې ورځي د خوار کړېوان ته
د مظلوم له خولې په آه و ازار خېږي

چې اختیار په لاس کښې ورغلو غدار له
نو بس پوئې شه چې منصور به په دار خېږي

چې د قام په غوښو لوی شي مشري کړي
هم هغه د قام خونخوار شي بېکار خېږي

وایو دے به مو د رنځ تکلیف دوا شي
هم هغه ظالم قاتل شي اوږ مار خېږي

چې په خوی اخلاقو درون غواړي سائیله
په نصیب به دې د خوار و نه خوار خېږي

یادگیرنه :- دا غزل د مارچ د میاشتې په یو دیرشم تاریخ کال ۱۹۷۱ء هغه وخت ویکلے شو. چې صدر پاکستان جنرل یحیٰی خان د بنگال شیخ مجیب الرحمان گرفتار کړو او د دغه عظیم لیډر په رومبنی ځل د پندیوانی تصویر اخبار کښې چاپ شو. چې لهستکړی په لاس د پولیس حراست کښې وو.



يهٔ دوستي په وايه څنګه زما ستا جوړه شي
چې دُنيا ورته پیغمبرۍ داسې دا جوړه شي

دَ هر چا دَ کتو خپل خپل يو انداز دے ګورۍ
دَ ښائسته ؤ چې سترګې ړنې ترې ادا جوړه شي

ته چې مانه نفرت کړې او زهٔ دَ تا نه نفرت
دَ بل نسل په قسمت بیده قضا جوړه شي

چې دَ بل لاسونه مروړې بې ضميره انسان
په سر مړه شه چې داهسې رنګ دنيا جوړه شي

ته ئې رټې په بدو ردو هغه بيا راشي
معافي وغواړې دوستي داسې دَ چا جوړه شي

دَعاشق په زړګي څوک خبر دي څهٔ تېرېږي
چې رنګيني جامې واغوندي زيبا جوړه شي

په کتو مې اشنا لرې تېښتي منډې وهي
لکه هوسۍ په داګو دَانګو دَصحرا جوړه شي

دَزړهٔ شيشه مې ترې ترې شوه خوره پرېوته
اوس يې ټوټې څهٔ له غونډې چې دا به بيا جوړه شي

سائله ما وئيل دوستي به هميشه وي زمونږ
نهٔ پوهېږم چې به بيا څنګه وفا جوړه شي

***



په ښائست کښې يو په سله زيبا ښکاري
په خورو زلفو ئې يادِ صبا ښکاري

دَ دریاب موجونه وایه ورته څهٔ دي
کهٔ مې ویښکې په ارمان دَ شها ښکاري

دَ هر ګل تحقيق مې ښهٔ په کتو وکړو
په هر ګل کښې ښهٔ ښکاره مې اشنا ښکاري

يو حسرت ئې دَ ليدو ستا دَ خولو وو
په ګل پټه چې اوبهٔ دَ ژړا ښکاري

ستا جمال نه شرميدلو حق حيران وو
ګل په پانو کښې مخ پټ هم په دا ښکاري

لاله تا سره سیالي کړه شرمنده شو
داغ په مخ دَ ملامت ئې صفا ښکاري

دَ میني بېدار ټول ستوري په شمار کړل
چي اسمان کښي ئې پوټسکے رڼا ښکاري

زوړند سر لکه نرگس شول همه ښکلي
چي داخل دَ چمن منځ کښي زیبا ښکاري

دا چي زهٔ پسي نعرې وهم گرم نهٔ یم
دَ چمن گل نه بلبل هم جدا ښکاري

زوُل طوفان دَ میني یوړمه له مخه
دَ جنون ژوند مي په ډاگه بېدیا ښکاري

دَ سائل په منت شنه ورته زاره شوه
په دُرشل ولاړ حیران دَ بُتا ښکاري

* * *



تکلیفونه ستا د مینې که هزار دي
چې خوبې د مینې شمار مه بې شمار دي

زړه ئې ورغلم کوڅې ته ډېر په مینه
هر سړی په بد نظر کتل اغیار دي

ما دې سر په قدم کېښود په زارۍ شوم
تا وې لرې داسې ډېر دی په ما زار دی

مړاوی رنګ مې په اثر د مړاوُ سترګو
پرهرونه مې په زړهٔ د غم بسیار دي

ستا د مینې په غوبل کښې چې راګیر شوم
د هر چا پېغورې ما پسې، وېزار دي

دَ هرچا نظر بلې ته دے پاس ګوری
خلقې چې دې ولاړې په دیدار دی

ستا کوڅه کښې دواړه ښې اړنګ دوړنګ شې
په دې لاره چې څوک نهٔ دروی هوښیار دی

مینه لویه سینه غواړې دَ عاشق نه
چې زغمل ئې دَ غم نهٔ وی څهٔ پکار دی

دَ ساحل زړګے ترې لاندې ګوزار شی
تورې زلفې دې هوا کښې تار په تار دی

***



یو لحظې له چې اشنا مې موجود نهٔ وی
خبر نهٔ یم چې بېګا او صبا څهٔ وی

مدام ناست وی په غصه قهرنیولے
هغه ورځ به څنګه راشی چې یار ښهٔ وی

دَ دُنیا خلق به هېڅ زمونږ ونکړی
کهٔ زما او ستا په مینه دواړو زړهٔ وی

دَ رقیب نه مې څهٔ طمع دَ خیر نشته
کهٔ انصاف دَ دادخواهۍ زما په دهٔ وی

په منت به یې پخلا کړم مرور دے
کهٔ سبب یې دَ خفګان زما ورتلهٔ وی

دَ طوفان موجونه پورته شي په زړهٔ کښې
چې کتلې په رموز کښې پټ په غلهٔ وی

څه په ولې کړانو پښېښو نه چار باسم
کهٔ درتګ مې ستا په لوری په لېمهٔ وی

زهٔ دَ مینې ملامت نه هسې یم
کهٔ خندا دَ خپل پردی یا بېګانهٔ وی

ستا دَ مینې په جنجال کښې هسې بوختیم
چې همېش به زما سر په زنګانهٔ وی

دَ جاپېدا د نه به محروم ټول پښتانهٔ شی
همېشه په ننګ ولاړ چې پښتانهٔ وی

ساپېل بیا مونده خوښی دَ جنتونو
څکه ستا در و کوڅې ته په پانهٔ وی

***

* * *

هغه ښکلی چې زما ځان و ځیګر دی
لکه سروه په قد، شان کښې صنوبر دی

چې مې شونډې ستا په شونډو خپلې کښېښوې
ما وې ښبنه په لېو ښبنه آب کوثر دی

ستا د خپو د تلو بوی هسې ښاسته دے
د عطار په دوکان چونې ښکلی عطر دی

خوشبوئی دې د بغل لاړه چمن ته
هر یو ګل په رنګ و شولو اوتر دی

چې ئې ستا خبرې واورېدې په باغ کښې
د سیالئ نه ټول مارغان په نغمو سر دی

ستا د زلفو د نسیم هوا اثر دے
چې ګلونه په ګلزار کښې معطر دی

ستا د وصل تمنا ئې پوره نه ده
د ساحل د سترګو وښکې په در در دی



چې په مینه کښې بالا او سرفراز شي
د هغوی مقام به پورته په قفقاز[۱] شي

د هغو خلقو یارۍ نه مې توبه ده
چې ئې ژوند محض وختونو سره ساز شي

چې د مینې فراقت کښې شهیدان شول
د هغوی عمر به تول عمر دراز شي

چې د مینې صداقت ئې نصب العین وي
پرواز ئې د خیال پورته د شهباز شي

د دنیا خلق ئې سپک او د خندا کړي
چې عالم ئې خبردار د عشق په راز شي

---

۱ د عرب مؤرخینو قفقاز - د پښتو او فارسي دښو مالا قیصو کوه قاف - او د قبل مسیح یوناني مؤرخینو کاؤکېسس (caucasus) کوه قاف -

دَ خیالونو په تمال وزانگم جوړې خورم
چې دَ مینې ښکلي یار په ناز ونیاز شي

دَ نړۍ مئین به ټول په ژړا سر شي
کهٔ خبره مې دنیا په سوز گداز شي

مینه ذات او دَ رنګ نسل نه بالا شي
چې محمود چرته مئین په چا ایاز شي

پرون ماته دې وعده بیا دَ صبا شوه
وایه اوس دَ نهٔ راتلو دې څهٔ جواز شي

مئین هغه وي کامران په عاشقۍ کښې
چې اشنائې موافق دَ زړهٔ دَ راز شي

ذهن سوچ چې مینه مینه محبت شي
دَ سائل په طبیعت شعر اغاز شي

* * *

Created with Scanner Pro



چې جلوې او نمائش دَ حُسن یار کړي
په ګړنګ به مې دَ مینې ورګوزار کړي

کهٔ ئې ولیدو اشنا زما په سترګو
دَ نرګس به په چمن کښې خطاوار کړي

کهٔ کوټل ته نیمه شپه اشنا یادېږي
نو بلبل په وریتو چغو شي چغار کړي

یو زهٔ نهٔ یمه چې عشق مې زړهٔ تغمه کړو
دَ لاله بدن لوخړې کړې داغدار کړي

دَ رقیب اشنا دوستي به سمون نهٔ خوري
لکه ګل پخیلو پتو پرخه بار کړي

دَ معشوق په قانون ظلم چې روا شي
مئین دغه ضابطه په خوار و زار کړي

خو دې اور په تنه لرزي ایرې کېږي
صنوبر چې ئې سیالي دَ قد په چار کړي

دَ زلفانو بوئې چې هسک لاړ شي بالا شي
زانې پورته په اسمان کښې تار په تار کړي

ځم دَ مینې لوئې دریاب کښې ورډوبېږم
په ورې ژبه بیان دغه ابشار کړي

قاصد بېرته دَ پیغام سره راستون شو
دَ رقیب نه دَ اشنا په کوڅه ډار کړي

ټول اشعار دَ سوي زړه دي څو اهونه
دا ساحل په پښتو ژبه چې اظهار کړي

* * *

***

زه چې ورته گورم تکه سره شي
ښکلې محفل پرېږدي پسته شي

غم دې په زړه ید مه لړه چرې
رباب چې مضراب تنگ وهي نغمه شي

پورته چمن ستړگې کا برقعې نه
دلته په زړه جوړه مې تغمه شي

زه پښتون په ویره ترې بې شانه
کله چې د قهره سره لمبه شي

ستا په دُرشل پرېوتمه خبر دے
مات که مې تندے په دا سجده شي

هیڅ ترې جاروتنه زما نیشته
مینه که هر څو اوږده قیصه شي

زار به شم ساحل ئې د غیرت نه
ما غوندې چې بل ته پښتنه شي

۱۹۷۱ء

* * *

اشنا ته به مې د دنځ قضیه حل کړې
په سرو شونډو که زما دارو درمل کړې

ستا په خوا کښې چې رقیب په خندا وینم
له دې تاوه مې په زړه یاره اوریل کړې

ستا د مخ دغه سرخي زما له زړه ده
چې څښې وینې څیني چارې د کمل کړې

په جفا د بشکلو ولې زړه رنځيږي
څنګه ته په د فطرت قانون بدل کړې

دا د وصل جام دې څه کړم بیا طبیبه
چې د هجر په غمونو مې دل بل کړې

ستا د زلفو مار چیچلې یم کړم یم
شا به شا به کنه یاره که څه چل کړې

د فطرت هره ذره کړې غزونې
ته سائله چې بیان دې خپل غزل کړې

راډیو ژوندۍ اجلاس ۱۹۶۲/۳/۲۹



دَ ځان څهٔ له صفائي کړې هسې نهٔ ئې
دَ تنګې تورې یارۍ کړې هسې نهٔ ئې

ښکلے ښکلي صفتونه لرې ځان کښې
بد به یاد شي څهٔ بدې کړې هسې نهٔ ئې

ستا دَ مخ سپینوالے تورنهٔ شو په عشق کښې
تش په خوله کهٔ عاشقي کړې هسې نهٔ ئې

ګله نخښې دَ خپل یار په تا کښې وینم
کهٔ مې یار سره سیالي کړې هسې نهٔ ئې

کهٔ یارۍ را څخه نکړې په ډاګ وایه
وعدې څهٔ خالي خولې کړې هسې نهٔ ئې

دَ سائل پکار بې نهٔ راځي سآئله
تش په توره کهٔ خاني کړې هسې نهٔ ئې

اپریل ۱۹۶۳ء



وایم لاړې دې دنیا نه لرې لرې
چرته لاړې دې قضا نه لرې لرې

زهٔ یې په مینه خپلې غېږې ته رابولم
وائي لرې شه له ما نه لرې لرې

چې ناستې له مې ستا خوا نصیب نهٔ ده
زړهٔ مې لرې دے هر چا نه لرې لرې

زهٔ یې پښو وَته تېښتم چې یې ښکل کړم
خوله مې ماته کړي وَئي را نه لرې لرې

خوار غریب یمه خوشحاله ستا په خوا کښې
امیر خوښ نهٔ یمه تا نه لرې لرې

سائل ځکه بې حیا ځیرې ګرېوان شو
چې ترې ګرځي له حیا نه لرې لرې

وائي

دسمبر ۱۹۶۷ء



شپه او ورځ په انتظار یمه دا ولې
ستا دَ حُسن طلبګار یمه دا ولې

چې دې نۀ وینم په ستړګو بې قرار یم
چې دې وینم په قرار یمه دا ولې

دَ دنیا دَ حُسن دومره لوئې بازارکښې
ستا دَ حُسن پُرستار یمه دا ولې

دَ زړۀ چاوُدې ژوندون طمعه خوره نۀ ده
دَ وفا دې پامته دار یمه دا ولې

ستا په یو مُسکا مې زړ ځانونه ځارشه
مئین دومره په نګار یمه دا ولې

دې نامراد زړګي مې هر څهٔ درپه دوٌ کړل
عقل و هوش نهٔ هم ویزار یمه دا ولې

د دې دومره لوی جهان په ننداروکښې
په خوښون دَ یو دلدار یمه دا ولې

ساحل پوی دے چې خیر نیشته په دې درکښې
دَ رحملو امیدوار یمه دا ولې

* * *

## رباعي

---

میخانو کښې مې توشلې دی مدام شراب دَ مینې
ما سرهٔ کړې دیوالونه دی پخپل خوناب دَ مینې

نهٔ ساحل ته مې حاجت شته نهٔ دَ خضر انتظار کړم
نهنګانو سرهٔ خوښ یم زهٔ په مینځ دریاب دَ مینې

۱۹۶۱ء



کهٔ دَ مینې مې یو یار دے هغه تهٔ یې
چې دَ زړهٔ مې شهسوار دے هغه تهٔ یې

دَ دنیا صنم کده کښې اے صنمه
مئین زړهٔ مې پرستار دے هغه تهٔ یې

دَ وختونو قید و بند نه بې پروا یم
چې هر وخت دې انتظار دے هغه تهٔ یې

چې دې زړهٔ زما په وینو کښې غروب کړو
په خوله هسې تیماردار دے هغه تهٔ یې

دَ سوچ فکر محور تهٔ یې بل څوک نهٔ دی
زړهٔ مې څومره بې قرار دے هغه تهٔ یې

شا مُدام چې په شرو سترګو په ژړا یم
چې په حال مې خبر دار دے هغه ته ئې

دَ دنیا دَ خوشحالو نه مې توبه ده
ما ته یو غم که پکار دے هغه ته ئې

دَ دُنیا دَ طلب هڅه مې بس پرېښوه
دم قدم مې په یو زیار دے هغه ته ئې

په زندان دې دَ غمونو ګرفتار کړم
که مې سر درنه په دار دے هغه ته ئې

سائِل ستا په صفت مور نشو ترننه
دَ ښائسټ که لوئې شاهکار دے هغه ته ئې

## رباعی

حُسن چې په چا دَ میېنې اور ولګوُ
یو هم شه چې بدنام شو پرې ئې تور ولګوُ

نیشته دے وفا خو امانې جفا جفا ده
څکه ئې سائِل په غم نسکور ولګوُ

۱۹۶۱ء



زهٔ په تا پسې کړېږم جانانه هسې
چې جُدا شوم له پردو او خپلوانه هسې

دَ زړهٔ درد یاندې مې څوک هم څهٔ پوې نهٔ شو
دَ علاج نه مې لاس راکښو درمانه هسې

په کاواکو یاندې سر مې په لیدو شې
کړه وم ئې په دیدن پسې ځانه هسې

چې مې یار راوستے نشی زما خوا ته
نن ناصحه په نصیحت کړم پرېشانه هسې

دَ ټټو یو دَ بېچموزو شوم دَ خلقو
چې ئې پرېښودم بې سر و سامانه هسې

عشقیت مې په فائده رانغلو چرې
ځان چې وینم په نقصان او تاوانه هسې

دَ سرو شونړو سپين غابښونو زينت گوره
ښه مزه ئې په وېښتو دَ گلان هسې

په دُرشل مې ستا دَ مينې چې سر کېښود
په تندې مې پرېوتل به گمان هسې

چې ئې ستا خُمارې سترگې په نظر شوې
په ځنگل کښې زغلېده به اهوان هسې

رقيب ستا زما خفگان ته شُهره ورکړه
په حجره جومات ئې خور کړو اعلان هسې

څهٔ فائده چې ښکلے يار مې مرور شو
دَ افسوس تلې مښل په ارمان هسې

دَ جمال جلال ئې هسې پُر وقار دے
دَ شان شور ئې خور ما خور په جهان هسې

سائل ستا دَ مينې درد باندې اوس پوئې شو
دَ افسوس اسوېلو خړ کړو اسمان هسې



بې تا مې ژوندون ګران دے ته مني که نه مني
په زړه مې ستا ارمان دے ته مني که نه مني

په وینښه ده که خوب کړم په زړه مې راوربوزي
ستا یاد مې هر زمان دے ته مني که نه مني

رقیب نه لري اوسه رقیب شخه نه بښائي
ستا ښکلیه دغه شان دے ته مني که نه مني

ستا مینه تباهي ده د زړه مې بربادي ده
غمونو کښې نالان دے ته مني که نه مني

په مینه چې ککړ شو سائل زېر و زبر شو
هر وختې سرګردان دے ته مني که نه مني



چې مې اوليدې ستا شنې چمنې سترګې
زيړې سترګې شوې زما سمنې سترګې

دا مې يار په غبن کښې خوروينې غصه دے
شفق نهٔ دے دَ اسمان لمنې سترګې

چې په مخ زما دَ يار ئې برابر کړې
رب ړندې کا دَ رقيب چخنې سترګې

تالاکړ دې هسې جوړ زما په زړهٔ کړو
چې راوه دې ړولې سيم بدنې سترګې

ارام لاړ مې شي له سترګو بې ارام شم
چې په خيال مې شي دا ستا اغزنې سترګې

ستا په ډېرو بدو ردو سائل چپ شو
پورته نهٔ کوري په دې غندنې سترګې

۱۹۶۵ء

* * *

خهٔ ښکلې ښائسته دې دَ اشنا سترګې
خورې مې په دې سترګو دا بلا سترګې

سترګې ئې دَ زرګو په شان سرې سترګې
سترګې خمارې دي دَ شها سترګې

سترګو نه دې زار دَ لهوسۍ سترګې شه
سترګو نه آهو پټوی ستا سترګې

سترګې خو دَ هر چا یو شان سترګې دي
سترګې ستا دَ هر چا نه جُدا سترګې

سترګې لیدونې مې دَ چا سترګو کړې
سترګې لټوې مې په بېدیا سترګې

سترګې مې ستا سترګو ته برېښنا کوی
سترګې کتے نشي نمر رڼا سترګې

سترګو دَ ساحل کښې غړې ستا سترګې
سترګو کښې مې عکس دَ دلرُبا سترګې

# باړې ته [1]

دَ اوبو دِکه څه په تاؤ راځي — قهر نيولې په چپاؤ راځي
نه! خشکو زمکو له تازه راوړي — ځکه په منډه په تاؤ دؤ راځي

ستا دَ عظمت نه بنه خبر یمه زه
ستا دَ دولت نه بنه خبر یمه زه

قدر دَ تا بنه په لعلونو وینم — حُسن دَ تا په ګودرونو وینم
ستا دَ ډې کارو او دَ شکو احسان — دَ پېښور په محلونو وینم

خړو اوبو کښې بهارونه دَ تا
دی منت بار همه باغونه دَ تا

اېډورډ [2] وطن کښې ستا ارمان وخوړو — قبر کښې پروت دغه بیان وخوړو
چرته یو ترا وے دَ باړې اوبه وے — هر څه دې خاورو بې ګران وخوړو

هر انګریز ستا دَ اوبو دے ارماني
دغه حال هم دَ یورپ دے اماني

---

[1] په ۲۴/۶/ ۱۹۶۳ء دریاب باړه کښې دَ یو زبردست سیلاب په موقعه

[2] وائي چې اېډورډ هفتم ۱۹۰۱ء تا ۱۹۱۰ء له به انګلینډ ته دَ باړې قلعه دَ تالاؤنونه اوبه څښلو دَ پاره تلې.

خوړې اوبه ستا د طاقت نه وکې د ننګ حیا او شرافت نه وکې
چې په پښتو اسلام خیل سردار کوي داسې پښتو او د غیرت نه وکې

تا کښې یارې د ژوندون نخښې پرتې
د غمونو د سکون نخښې پرتې

هغه ده بیا پورته په بام وخته په څه غرض سرې ما ښام وخته
بیوړ د عمرونو تمنا شوه پوره چې بې پروا له ننګ و نام وخته

ستا په سیلاب کښې ډیر خوندونه بارې
د پښتنې پیغلې امیدونه بارې

لږ تپوس وکړه دې کمرونه ته هره چپه باندې راالوځېږي په څه
غاړه غړې د یو پیغام د پاره چېرته حاصل د غم ښامرادې شي که

ډیر عمر تېر شه ما رحمان ونه لید
د پښتنو شاعر جانان ونه لید

حمید دې غیږه کښې ژوندون کړیدے شعرې دنیا باندې فسون کړیدے
مونږه فائدې ستا هېره ولې نشو شکر موند وکښې دې یون کړیدے

ستا په سیلاب که بر تیراه برباد دے
په دا تیراه دا پېښور اباد دے

دالبونې مستې اوبه وې د تا چې معز الله رحمان دنیا ته شوشا
د خوکتو صاحب مې هم نه دے هېر هم دے بابا صاحب په یاد کښې زما

اوبه دې نه دي په رښتیا ده کیمیا
خاورې زر شوې په یو څاڅکي د تا

سیف الرحمان، ایوب، سرور لوئ شوے ستا په اوبو دے قلندر لوئ شوے

چې د پښتو ادب پرې ویاړ کوي نن ستا په اوبو دے صنوبر لوئ شوے

ستا د چپو او شور و شر نه قربان

ستا د هر ګوټ اب کوثر نه قربان

ته په هیڅ اړ نه ئې په محمد زغلې تا ته طاقت د هر چا خلې پلې

منم بهادرې! له چا نه ویرېږې د چا خانۍ اربابۍ تا وړلې

سر ټیټوول ستا په فطرت کښې نیشته

ستا غلامي د چا قدرت کښې نیشته

ستا په لمن کښې ښه ځوانان پراته دي فیض الله خان او بهرام خان پراته دي

د توري درز چې ئې دنیا منلې صاحبزاده[ل] غونډۍ شهید پراته دي

که په بل ځائے خفا ساحل وینمه

دلته ئې خوښ ستا په ساحل وینمه

---

ل د بازید خېلو صاحبزاده محمد اسلم

# دَ باړې سېلاب

(ډېر پخوا به چې دَ بهادر کلي خواکښې په باړه کښې سېلاب راغلو نو ډېر زیات نېزه وړې او خشاک به ئې راوړو. چې دَ خوار غریب دَ یو کال ګوزارې دَ پاره په کافي وو. اوس کښېږه ډېم دَ تکمیل په وجه نهٔ هغه سېلابونه شته او نهٔ هغه خشاک )

عالمه سیل تن دَ باړې کُومه
سېلاب راغلے دے موجونه وهي

غریب زلمي پېغلې باړې ته زغلي
نیسي خشاک کړه وړه ولاړ دي غلي
حیران ولاړ پاتې منظر ته یمه
عالمه سیل تن دَ باړې کُومه
په یو خوار حُسن مې نظر پرېوتو
نظر سره مې زړګے لړ پرېوتو
خړو اوبو کښې سپین لاسونه وهي
سېلاب راغلے دے موجونه وهي

نیسی خشاک په چا غرض نهٔ لری
دهٔ بې پروا دَ عشق مرض نهٔ لری
بې تابه زهٔ دلته دَ مینې شومه
عالمه سېل نن دَ بارې کومه

خشاک ته لاس اچئی په ویره ویره
لاندې کتل کړی او نهٔ گوری بېره
زړگے زما دلته توپونه وهی
سېلاب راغلے دے موجونه وهی

لاړهٔ خشاک نه کېنې دکه شوله
دَ کور په لور روانه ځکه شوله
دلته ولاړه یمه حېران بې دمه
عالمه سېل نن دَ بارې کومه

ساتېله غم مې پخپل سر واخېستو
مینه لوړ غر دے نیشته لار دَ ختو
ژوند په اوس لاړه دَ غمونو وهی
سېلاب راغلے دے موجونه وهی

۱۹۶۰ء

* * *

# د رحمان بابا په مزار [1]

چې روح ئې نن زمونږ په تماشا دے لته دے
ظاهره چې فنا باطن بقا دے دلته دے

هر څه ورته په لاس د عقیدت غنچې نیولې
د وارو پښتنو چې ستر بابا دے دلته دے

یو شمع په تیاره کښې، دے محفل پرې رڼا شوے
ادب کښې د پښتو چې په ځلا دے دلته دے

اے مزکې د مومندو، ئې خبر په عظمت خپل
چې پروت دې په سینه کښې یو پارسا دے دلته دے

کلام ئې ډک له سوزه مشهور لسان الغیب
روانه ساده ژبه کښې گویا دے دلته دے

ولاړ گوته په خوله دے افلاطون ورته حیران
د شعر په حکمت کښې چې سینا دے دلته دے

چې حل ئې دي کړانې مسئلې د تصوّف
د کردې پښتو نخوا چې رهنما دے دلته دے

---

[1] د رحمان بابا د کلیزې ١/٤/١٩٦٢ء په موقعه

گوشه ئې وه نیولې دَ دُنیا له شورو شره
نن نخ خان له پوازې په بېدیا دے دلته دے

باغونه چمنونه دَ ادب مې وکتل
بوستان مې خوبن دَ چا چې په رشتیا دے دلته دے

چې سر ئې وو تلې کښې په درشل دَ مینې ایښے
سردار دَ عاشقانو راشئ دا دے دلته دے

وکښلې ئې دَ تل نه دَ دریاب دی ملغلرې
ملهم دَ شوې زړهٔ چې دَ هرچا دے دلته دے

هرچا وَته چې خلقه اپخپل شکل وو ځرګند
ائینې غوندې بې رویه بې ریا دے دلته دے

غمونه سخت دردونه پخپل ځان ئې وزغمل
چې مینې له زما او ستا دوا دے دلته دے

پخپلو دپرو شتو کښې وو بې نیازه قلندر
دولت نه دَ دنیا چې بې پروا دے دلته دے

پندونه دَ ناصح ئې له یو شعر شه قربان
په حقه پسته ژبه چې ګویا دے دلته دے

بېرغ ئې دَ پښتو ادب اوچت کړو په نړۍ
یو درز ئې چې پرې ایښے په دنیا دے دلته دے

نن څهٔ شولو سالُله دَ دومې هغه ملنګ
بادشاه چې په باطن ظاهر ګدا دے دلته دے

***

# دَ

# مور په قبر

پاسه اے مورې زما مورې پاسه
ماته ستا یاد هغه خوارهٔ لاسونه
پاسه اے مورې زما مورې پاسه

بیا به دور هغه رانشی　　چې دَ مور په ښکلي غېږ کښې ځملهٔ شی
مراوې ستر ګې ورو اودهٔ شی　　ناخبره په هوا تللهٔ شی
دَ خوشحالۍ ویرې اوږدهٔ خوبونه
ماته ستا یاد هغه خوارهٔ لاسونه
پاسه اے مورې زما مورې پاسه

کله ویوښ نېږه پاسه　　بیا اودهٔ دَ مور په لاسه
کله خانده خوله کښې اسه　　ښائسته خوب نه ځان وباسه
خوب نه اخله په رنګ رنګ خوندونه
ماته ستا یاد هغه خوارهٔ لاسونه
پاسه اے مورې زما مورې پاسه

پاسه پاسه چې چائې نوش کړې ‌ ‌ ‌ دَ مکتب بسته په دوش کړې
لیک لوست ته پیدا جوش کړې ‌ ‌ ‌ هر کار په عقل هوش کړې
قدمونه په ښکلې ستا منزلونه
ماته ستا یاد هغه خواره لاسونه
پاسه اے مورې زما مورې پاسه

دا دے لارمه اوس ځوان یم ‌ ‌ ‌ په برکت دې ښه روان یم
دَ تېر وختونو په ارمان یم ‌ ‌ ‌ دَ قبر خوا کښې دې حیران یم
پوره کوره خپل نیمګړې ارمانونه
ماته ستا یاد هغه خواره لاسونه
پاسه اے مورې زما مورې پاسه

کاش چې ژوندی وے تا لیدلے ‌ ‌ ‌ په شفقت مینه دې پاللے
هره لمحه دې ښکلولے ‌ ‌ ‌ سائېل دې ښوکښې لوغړېدلے
بیا به راشې هغه تېر وختونه
ماته ستا یاد هغه خواره لاسونه
پاسه اے مورې زما مورې پاسه

۲۰، جنوری ۱۹۶۴ء

* * *

# دَ

# خیل پلار په مرګ

اکتوبر ۱۹۷۵ء

ښه لوړ دنګ په جوسه دروند لوی پهلوان لاړ
دَ بهادر کلی نه خان دوست محمد خان لاړ

لکه دروند غر چې راپرېوزي په دې زمکه
داسې ډرز شو چې راپرېوتو ښه ځوان لاړ
دَ شهاب ثاقب یو ستورے وو فنا شو
خان بابا هم دَ عدم په لور روان لاړ
چې فتح بال ئې دَ پښتو سر باندې ښکاره
ښه لوبغاړے دَ میدان رُستم زمان لاړ
په ټول کلی کښې ژړا شوه یو غوغا شوه
نن نمسے چې دَ بابا عبد الرحمان لاړ
نوراني څهرې ئې پرق وهو تابوت کښې
تا به وې یو ښائسته ګل، ګلِ خندان لاړ
چې دَ زمکې تل ته کوز ښائسته بدن شو
په ژړا په کړیکو سر زمکه اسمان لاړ

په څپېړو اسمان سُورکړو مخ په وینو
په دَرُ دَرُ ستړکو دَ اوښکو يُې باران لاړ

شپې واغوست تور غلاف په دې ماتم کښې
ترمې ترمې هر يو ګل دَ ګلستان لاړ

دغه شپه څومره ډرنه وه دَ هيبت وه
چې رُوح وتے لاش وو پروت جنت نشان لاړ

چې يُې رُوح پرواز کوو مونږ په ژړا وو
هيڅ په مونږه زهير نشو زړه سندان لاړ

هيڅ لحاظ يُې زمونږ نهٔ ساتهٔ روان شو
په سفر دَ خدائے په حکم په فرمان لاړ

په ربړه يو په تې وی غږ يُې دَ رحلت وو
ټول بهادر کلے په غم کښې په لړزان لاړ

دَ هر چا په مخ خوره افسردګی وه
يو نر ځوان دَ خاندان دَ بهادر خان لاړ

چې په درد وو دردِ بند لے دَ بې کسو
دَ غيرت پيکر په رې کښې دَ چشمان لاړ

چې ټول ژوند يُې په نيکۍ دَ خلقو تېر وو
اوس مړ نهٔ وو دَ ټول عُمر جاودان لاړ

دَ بالا باغ زمکې ګواه شه په دې خلقو
چې خان جی دَ دې دُنيا نه په لوئے شان لاړ

دَ ښائسته شکل شهرت ئې وو عالم کښې
نن ډېرے دَ خاورو کانړو دے ارمان لاړه

ساتېل وائي دادا جان لاړو جُدا شو
تمامي عُمر په لوړ دَ قبرستان لاړه

* * *

# رباعیات

(۱)

پښتون هغه دے چې ننګ اوښه وي
چې داسې نه وي پښتون په څه وي

پښتون له کار خو دَ پښتو بويه
چې بې پښتو شي نو پښتون نه وي

۱۹۶۲ء

(۲)

چې مې دَ خان په نامه نما نځې
وېمه دَ مور کنځلي کاندې

داسې خانئ نه مې توبه ده
چې خوار غريبو پوري خاندي

۱۹۶۳ء

# دَ

# مولانا عبدالقادر په وفات[1]

---

لویه خدایه مولانا عبدالقادر اوبښې
دَ پښتون په ننګ ولاړ لکه لوی غر اوبښې

چې په پښتو او په پښتون یې وخپل سر ایښودے
دَ "پښتو" په سرکښې تللے ځیګر ورا اوبښې

هغه پسته نرمه لهجه او څه دَ خوند خبرې
دَ پښتنو ښکلے جانان ښکلے دلبر اوبښې

خفا غمژن شم چې رایاد شي هغه ښکلے وجود
هغه خاکسار ساده درویش او قلندر اوبښې

کاش چې ژوندے څه موده نور وې دَ پښتو خدمت له
په پښتو پښتون مُین دغه رهبر اوبښې

---

۱ دَ مرثیې دا څو اشعار دَ مولانا عبدالقادر دَ وفات په دریمه ورځ ۲۵ اکتوبر ۱۹۶۹ء ولیکلے شول.

هغه بابا چې د هر چا په درد دردمند وو مدام
د پښتونخوا سیمې له زر او گوهر اوبخښي

د پښتون حق له چې په ستېج لکه زمری غړمېدو
دغه پیاوړی بهادر زړه ور بشر اوبخښي

د علم ډکه سرچینه هر چا ترې علم اخیست
موږ ړندو له یو اُمسا وه هم نظر اوبخښي

سائل له خوده که بېرته نو هېڅ گرم خو نه دی
خدایه استاد ته مهربان د علم نمر اوبخښي

*

* * *

*

# تاج محل

دَ مينې محبت اوږد داستان دَ تاج محل
آگره کښې دوه قبرونه عاليشان دَ تاج محل

واقعي يو عجوبه ده دَ دُنيا په ځنې اووُ نه
دَ عشق په نوم اباد دے دا مکان دَ تاج محل

واه واه شُو شاباسے شو چې دننه په يو باغ شُو
يو پړق وو دَ مرمرو او مرجان دَ تاج محل

دَ جمنا درياب په غاړه شاهان کورې خپل محل ته
کاش ژوندې مونږ ابدي وے ډير ارمان دَ تاج محل

دَ جمنا په بله غاړه دَ قلعه تش محلونه
ممتاز خرم[1] بس غواړي هر زمان دَ تاج محل

ممتاز[2] چې ځغېدله جاه جلال دلته موجود وو
نذير مقصود[3] کوره اوس بيابان دَ تاج محل

---

[1] شاه جهان [2] ممتاز محل

[3] و [4] زما ملگري محمد نذير ليکچرر گورنمنټ کالج کوټه صوابي
مقصود احمد لائبريرين گورنمنټ کالج پېښور

هندوان دي په سجده وي دعا غواړي د پادشاه نه
قاتل د خان[1] جهان د شاه جهان د تاج محل

ارواح ئې شو راته مخکښې د کمال[2] دریا بهلول
د هندوانو منځ کښې وو دریم حیران د تاج محل

وینې ژوي شاه جهان لوارې تېرې د ښېټون کړې
بیائې جوړ کړه محلونه د آن شان د تاج محل

سیلانیان دي دعا غواړي د فرضي مینې مجنون نه
لاسونه مې رسېږي یم پرېشان د تاج محل

اورنګ به پرېښوونه وې په دې ښکلي سبزار کښې
د جهان[3] آرا که نه وې بابا جان د تاج محل

څه ستا هغه درشل شو زور زراو محفلونه
نن خاورو کښې پراته دي بادشاهان د تاج محل

دهلي ته روانیږه څه ساټله بېرته ستون شه
تاریخ د ماضي پرېږده هندوستان د تاج محل

١٥/٠٦/١٩٨٣ء
آګره

---

[1] خان جهان لودي
[2] کمال خان داؤدزي، دریا خان داؤدزي، بهلول خان میانه (مومند)
[3] د شاه جهان لور او د اورنګ زېب خور.

# دَ خواجه معين الدين چشتي

# مزار

---

ډېر سوال يې ترې کوُمه زړه چې لوئ سرکار له ځمه
په هند کښې لوئ ولی دے دَ اجمير دربار له ځمه

دې وطن ته ډېر پخوا مې دو والد صاحب راغلے
صفت مې دَ خپل پلار نه وو دَدې ځائے اورېدلے
دَ اجمير په سيمه پروت دے حضرت معين ښاغلے
ښکاره ئې فضيلت دے زړهٔ يو داسې ښار له ځمه
په هند کښې لوئ ولی دے دَ اجمير دربار له ځمه

دَ پلار په ډېر منښتو زهٔ راغلمه دُنيا ته
وې نوم مې خواجه کېښود دا ئې وې غفور ماما ته
پلار مې ډېر شکر ادا کړو چې طعنه نهٔ شوم ميراته
دَ هغه دم په ياد کښې دَ شپېلۍ فنکار له ځمه
په هند کښې لوئ ولی دے دَ اجمير دربار له ځمه

انوار دي برکات دي چي وربري شا مدام
هندوان سکهان حاضر دي په تکل دَ خپل مرام
هر تن لاس په دعا دے دَ لوي الله په نام
زړه مې چي يو سوالي يم دَ خواجه مزار له ځمه
په هند کښي لوي ولي دے دَ اجمير دربار له ځمه

اجمير يو ښکلے ښار دے راجپوت دلته اباد دے
هرکس وَته چي کوري لوړ دنګ او ښائسته ښاد دے
طاوُسان دي چي نڅا کړي صحرا ده نرے باد دے
چي زړه مې پکښي خوشحال وي هغه ګلزار له ځمه
په هند کښي لوي ولي دے دَ اجمير دربار له ځمه

راجپوتانه راجستان، دښتونه بيابان
دَ ورونو جلوسونه، ښځي باجي او ډېر سازيان
ټول ښار په سر اخيستے، داد ستور دے فراوان
تلو سه ده ډېر ارمان دے عجيبه ښان زار له ځمه
په هند کښي لوي ولي دے دَ اجمير دربار له ځمه

تسکين شو تسلي شوه چي غلاف مې په سر خور شو
شروع شوم په سوالونو يو سوال بسي بل نور شو
حليتونه مې بسيار شول خيال دَ يو الله په لور شو
خوره جولۍ نيولې داسي پُر انوار له ځمه
په هند کښي لوي ولي دے دَ اجمير دربار له ځمه

نېټه: ۲۰ جون ۱۹۸۳ء
اجمير شريف

# قطب مینار

ستا عظمت شان و شوکت ته مې سلام
په دهلي کښې غټه نخښه د اسلام
بادشاهان دې ځي دنیا نه وار په وار
تل تر تل به وي موجود قطب مینار

محمد غوري اسلامي سرکار قائم کړو
په اول ځل ئې په هند مسلم دائم کړو
قطب الدین مرئې بادشاه د ډېر اعتبار
تل تر تل به وي موجود قطب مینار

دې دومره دنګ مینار ته حیرانېږم
د ایبک تصور کار ته حیرانېږم
د اول مسلم بادشاه عظیم شاهکار
تل تر تل به وي موجود قطب مینار

یو انسان وی چې عظیم کار رونما کړی
خلقې ئې تعریفونه په دُنیا کړی
بل انسان نه دَ الله مخلوق ازار
تل تر تل به وی موجود قطب مینار

علاؤالدین په هسې هڅه کښې ناکام شو
مکمل ئې تعمیر نهٔ شو ناتمام شو
راشه وګوره نیمګړے دا یادګار
تل تر تل به وی موجود قطب مینار

لوټې لوټې دلته پروت پخوانے ښار
ورڅخه دے دَ بختیار کاکی مزار
په قسمت شو دَ ساحل زیارت دیدار
تل تر تل به وی موجود قطب مینار

نیټه ۲۸ جون ۱۹۸۳ء
دهلی

* * *

# رقیب

---

نن لویه خدایه! جوړې خوب وینم
دَ یار په مینه لېونتوب وینم
دا نهٔ کېدل! نن کېدل دي ولې
رقیب په سرو وینو خړوب وینم
دغه دے راغے زیړ مې نیولے
غُصه مې لکه شر مې نیولے
کوره هسې تړې پرېږمه زهٔ
لمنځې بې لمنځه تړې بوږنېږمه زهٔ

زهٔ یم انسان، دے حیوان دے ځکه
او زهٔ بهار، دے خزان دے ځکه
جُدائی دَ دوو مینو کوی
خلق وائی دے شیطان دے ځکه
یره نشی دَ بل چانه زما
لکه شی دې بې نوا نه زما
او کهٔ هر څو منع کومه دے
نهٔ اوړی چرې دَ ستمه دے

ځه چې لاړ شو، شو تړي باغ ته روان
اوګورو سپل، او لړ شو دهٔ نه پنهان
اوس رقیب نیشه، اے نرګس چشمان
دلته راتلے نهٔ شي زمونږ دُشمنان
نهٔ ګلُ، زهٔ بُلبل، دا خار دې نهٔ وی
زهٔ ستا، تهٔ زما، بل یار دې نهٔ وی
راشه راشه نن زما شه دلبر
بُت به جوړ کړمه ستا، یمه آزر

پرستش به کړمه ستا اے ګُله
یم دَ هر څهٔ تېر په تا اے ګُله
شوم دې ستړے په جفا اے ګُله
ما سره کړه اوس وفا اے ګُله
ځه چې ځو اوس دې دنیا نه لرې
لرې لرې دَ هر چا نه لرې
هلته سازه به دنیا کړو بله
رقیب نهٔ راسی هلته کله

دَ ساقي هلته کښې څهٔ کار نیشته
زمونږه دوؤ نه بل مېخوار نیشته
جام دَ میُو به یو بل ته نیسو
څښو به ډک ډک جامونه عار نیشته
اُف ناقدره له رقیبه یم
ځکه دنیا کښې بد نصیبه یم
کهٔ چرې ګورئ دا دے بیا راغلو
دا عزرائیل روح له زما راغلو

۱۹۶۲ء

# پښتونخوا

دَ هر ملک او هر وطن نه چې ښکلې زیبا ده
دغه پښتونخوا ده، دغه پښتونخوا ده

مسکن که دَ کندهارا پهلوان وو
اشوک دلته حاکم دَ هندوستان وو
دَ سیتهین که دلته بود و باش وو
دا ځائې دَ ساکایانو هم کُشان وو
دَ هُن بربریت دے واویلا ده
دغه پښتونخوا ده دغه پښتونخوا ده

دَ علم و فن مرکز که یُودیانه وه
لوئې ښار دَ کاروبار ئې مساګا وه
دَ اباسین په غاړه ښار ښه دَ ویهند وو
ګلونه ښه باغونه او ښه هوا ده
دَ سکائي لیکس سفر په بحر دَ لونړا ده
دغه پښتونخوا ده دغه پښتونخوا ده

دَ یونانه سکندر دے راروان دے
اسټس دَ پُښکلاوتی حیران دے
پردیکاس او هیفاستون دی په چپاؤ دی
اسټس دَ سکندر نه رُوګردان دے
دَ ګندهارا سیمه سر په یو غوغا ده
دغه پښتونخوا ده دغه پښتونخوا ده

یو زمان دَ نمر پرستو ذور دوره وه
دَ بُدهیانو بیا په دې سیمه ډېره وه
چینی زائران دلته وو راغلی
مقدس دَ پېښور ذره ذره وه
خوره بیا دَ اسلام سپینه رڼا ده
دغه پښتونخوا ده دغه پښتونخوا ده

اشوک دے که کنشک دے تا دی ښه پاللی
پانیني چانکیه دی تا دی ښه کاللی
قدیمو اریاؤ دلته ژرک وهد دے لیکلے
فاهیان او هیون دلته وو راغلی
مجسمه دې دَ سنګتراش خومره اعلی ده
دغه پښتونخوا ده، دغه پښتونخوا ده

غزنوی ګوره چې دلته په حملو دے
چې پال دے نور په تښته په وتو دے
هندومت دلته راپرېوزی خاوری کېږی
د اسلام شان و شوکت دے د کتو دے
د اسلام په هند دې ځائے نه ابتدا ده
دغه پښتونخوا ده، دغه پښتونخوا ده

غوری دے چې روان دے په یرغل دے
د خلیل مومند داؤدزی د ګکړو کل دے
د پښتون د توری برق دے او برېښنا ده
د پرتهوی لښکر په منډه دے په زغل دے
دا مړانه د غوریانو د بابا ده
دغه پښتونخوا ده دغه پښتونخوا ده

بابره! مونږ لیدلے سرګردان وې
اُزبکو راشړلے وې پرېشان وې
پښتون دې امداد وکړو ستا په ډاډ شول
د دهلی په تخت بیا ناست خوشحال خندان وې
د نمسو دې د پښتون په سر سودا ده
دغه پښتونخوا ده، دغه پښتونخوا ده

ستا په مزکه هر یو ظلم د اکبر وو
شاه جهان تري څه کم نه وو برابر وو
د اورنګ ظلمو نه حد نه زیات بسیار وو
چې ایمل څخه ئې جنګ په لرو بر وو
د تاریخ نه دا قیصه ټوله صفا ده
دغه پښتو نخوا ده دغه پښتو نخوا ده

ځوانان دی ټول د توورو په شرنګا دی
د هند په لور روان دی په خندا دی
دهلي دکن بنګال دے که بهوپال دے
د پښتو لاندې د هند سیمې دا ستا دی
مرهټه وائي پښتون نه مي قضا ده
دغه پښتو نخوا ده، دغه پښتو نخوا ده

پښتو نخوا ده چې برباده نادرشاه کړه
پښتو نخوا ده چې اباده احمدشاه کړه
یار محمد سلطان محمد لوئے حریصان وو
پښتو نخوا ئې وران ویجاړه هر بادشاه کړه
د سکهانو د لاس څخه لویه جفا ده
دغه پښتو نخوا ده دغه پښتو نخوا ده

رنجیت سنګه وې پښتون سیمې برباد کا
په پښتون دې چرته رحم په ما زیاد کا
خو بدل ئې نن اخیستې هری سنګه نه
د جمرود په واقعه یې زړه دوی ښاد کا
طوپله درځه مستاټک د دوی سزا ده
دغه پښتونخوا ده، دغه پښتونخوا ده

دلته موږ خوشحال رحمان لیدلې دے
دې ځاے موشګاف حمید پالَلې دے
دلته معزوالله ارباب لوۓ شوے دے
رُعب د شاعرۍ هر چا منلې دے
د دې خاورې دنیا د نمر پرقا ده
دغه پښتونخوا ده دغه پښتونخوا ده

قافلې وې په دې لار تلې هندوستان ته
کاروان روان دوان وو خراسان ته
لویه لار د تجارت وه په دې سیمه
تجارت عرب عجم څخه ایران ته
د هند په لورې لار د بطوطا ده
دغه پښتونخوا ده دغه پښتونخوا ده

انګرېز وي دَ هر چا نه بهادر یم
یو پښتون پښتون وهٔ، وي منوبر یم
زهٔ ازاد یمه لوے شوے زهٔ ازاد یم
دَ زندانه نهٔ وېرېږم شېر ببر یم
شمله هسکه دَ چا ده، دَ کاکا ده
دغه پښتو نخوا ده، دغه پښتو نخوا ده

چا ووې چې ستا نوم به اریانه وی
یل ووې چې نه دا به ګندهاره وی
مغلو وې ستا نوم مې "کابل" کېښود
انګرېز وې نه "سرحد" به ښهٔ ښکاره وی
په پښتو ژبه نامه ظاهر زما ده
دغه پښتو نخوا ده دغه پښتو نخوا ده

غرونه دلته ډېر دی، دښتې بیابانونه
ښائسته ښائسته ګلونه، ښکلی ابشارونه
ګوره دریابونه روان ښکلی سیندونه
اونې بوټې ډېر دی، هر رنګ ئې دی مرغونه
دَ جنت یوه ټوټه ښکلې چې دا ده
دغه پښتو نخوا ده دغه پښتو نخوا ده

پښتو نخوا نامه وطنه ښکلې ستا ده
سابتکل وائي نامه داسې دَ چا ده
ته دَ پښتون زړه ځان وځيګر يې
پښتون او خواږې يوشې پښتونخوا ده

ستا دَ نوم نه په هيبت ولې دنيا ده
دغه پښتونخوا ده دغه پښتونخوا ده

---

# Zarhah Yaduna

*Poetry*



**1995**

دَ ځوانۍ "زاړهٔ يادونه" چې رايادشي
په رنګين تصور فکر مې زړهٔ ښادشي
دَ ځوانۍ عمر نسيم دَ سحر تېر شو
دَ پيرۍ په سپېرهٔ ياد ځوانۍ بربادشي


**Khawaja Muhammad Sayel**

**Deh-Bahadur Peshawar**